وثيقې، حجت ليک، ترونونو، د دوو تنو يا دوو يا زياتو ډلو تر منځ د هر راز جوړ جاړي د ليک د ليکلو، ... وړتيا ولري. د اړتيا په صورت کې بل چاته اړ نشي. ددې موخې ترلاسه کول د ښوونکي دنده ده او په هر درسي ساعت کې د هغه د کار او زيار په څرنګوالي اړه لري. ښايي درانه ښوونکي له زړه سوي او مسؤوليت څخه ډک چلن وکړي، له زده کوونکو سره ددې موخې په تر لاسه کولو کې مرسته وکړي او له دې لارې د افغانستان په راتلونکې کې د خپل کار او زيار او نه ستړې کېدونکو هلو ځلو روښانه انځور ننداره کړي.

**يادښت:**

له مورنۍ ژبې پرته د پښتو لوست کتابونه دري ژبو سيمو ته هم ليکل شوي دي. د افغانستان د اساسي قانون د ۱٦ مادې له مخې پښتو او دري د افغانستان دوه رسمي ژبې دي. د افغانستان هر اوسيدونکی ښايي د خپلې مورنۍ ژبې ترڅنګ دا بله رسمي ژبه هم زده کړي. يو زده کوونکی بايد له ښوونځي څخه تر فراغت وروسته پردواړو ژبو وپوهيږي، افهام او تفهيم پرې وکړای شي او د امکان تر بريده پرې خپلې اړتياوې پوره کړي. ددې موخو د تر لاسه کولو لپاره د دويمې ژبې په توګه د پښتو د لوست د کتابونو د تاليف په اړه له پوره غور او سوچ څخه کاراخيستل شوی. هڅه شوې هر لوست د زده کوونکو د عيني اړتياوو پر بنسټ چمتو شي؛ ورځنۍ اړتياوې، د جملو جوړښت او ساده ګي، د نوو کلمو کارول، د جملو منطقي تسلسل او داسې نور په پام کې ونيول شي. که د پښتو دا کتابونه د ښاغلو ښوونکو له خوا په سمه او رغنده توګه تدريس شي، باور دی، چې له ښوونځي څخه تر فراغت وروسته به زده کوونکي وکړای شي خپلې ورځنۍ اړتياوې له ستونزو پرته هوارې کړي.

ښايي يادونه وشي، چې په مورنۍ ژبې کې يو زده کوونکی خبرې کولای شي او په اوريدلو يې مفهوم تر لاسه کولای شي، خو يوازې لوستل او ليکل نشي کولای. په داسې حال کې چې له مورنۍ ژبې پرته خبرې کول، اورېدل، لوستل او ليکل، څلور واړه، د زده کړې له لارې ترسره کيږي. په دې توګه د دويمې ژبې په زده کړه کې تر هرڅه دمخه پر خبرو کولو او پر خبرو پوهېدلو (اورېدلو) ټينګار کيږي. لوستل او ليکل په دويم پړاو کې راځي.

د دويمې ژبې په توګه د پښتو لوست په کتابونو کې د لوست د متن په پرتله په فعاليتونو او تمرينونو زيات زور اچول شوی دی. درانه ښوونکي دې، دې ټکي ته پوره پام وکړي، چې د متن د منځپانګې (محتوی) له مخې زده کوونکي ډېر فعال وساتي، د ټولګي مخې ته يې راوغواړي او خبرې پرې وکړي، که څه هم په لومړي سرکې دا خبرې پوره معنا ور نه کړي. په ورو ورو زده کوونکي له خبرو سره مينه پيدا کوي، خپلو نيمګړتياوو ته پام کوي، ډاډمن کيږي او له ډاره پرته د نورو په وړاندې خبرې کوي او د نورو پر خبرو ځان پوهوي. ښوونکي ته سپارښتنه کيږي، تر ډېره بريده په ټولګي کې له زده کوونکو سره په پښتو خبرې وکړي او هغوی هم وهڅوي، چې د پښتو په درسي په ساعت کې په پښتو وغږيږي. ښاغلي ښوونکي دې د يو لوست موضوع د اوونۍ په اوږدو کې بيا بيا تکرار کړي او ډاډ دې ترلاسه کړي، چې د زده کوونکو په خبرو کولو او سمو اورېدلو کې ښه والی راغلی دی. درانه ښوونکي دې د خپلو تدريسي تجربو له مخې له بېلا بېلو ميتودونو او لاروچارو څخه ګټه واخلي او هڅه دې وکړي لوست د زده کوونکو له مينې سره برابر چمتو کړي. د ټولګي دننه د غونډو جوړول، تمثيل، د مقالو ليکل، د جرېدو جوړول او د ورځنيو اړتياوو په اړه خبرې کول داسې فعاليتونه دي، چې زده کوونکي د ژبې زده کړې ته هڅوي او مرسته ورسره کوي.

د لوست په دې کتابونوکې د ورځنيو موضوعاتو په اړه يو لږ مرکې راغلي. ښوونکی دې دا مرکې په زده کوونکو سرته ورسوي. توپير نه کوي، که مرکې ټکي په ټکي د کتاب له متن سره سمون ونه لري. درانه ښوونکي دې زيار وکاږي، ددې مرکو په څېر نورې په زړه پورې موضوعګانې پيدا او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي، چې په لېدو مرکو يې سرته ورسوي. دلته د ښوونکو مهارت، وړتيا، تجربه، مينه، مسؤوليت او نه ستړې کېدونکی کار خورا ډېر اغېزمن واقع کيږي. له دولسم ټولګي څخه د دويمې ژبې فارغ زده کوونکی بايد تر ډېرې کچې په پښتو خبرې وکړای شي، نورو ته خپل مفهوم او غوښتنه له ستونزو پرته ورسولای شي، د نورو پر خبرو او ويناوو پوه شي او هغه څه چې غواړي له ستونزې پرته پخپله وليکلای شي.

د داسې يوې ورځې په هيله، چې د افغانستان ټول وګړي له ستونزو پرته د يو واحد ولس په توګه يو د بـــل پـــه ژبـــه وپوهيږي او خپلې اړتياوې پوره کړي.

د ثانوي دورې د پښتو ژبې درسي کتابونه د افغانستان د تعليمي نصاب د عمومي هدفونو پر بنسټ په دې موخه تاليف اوتدوين شوي دي چې زده کوونکي په ټولنيزو اړيکو کې د ژبې پر ارزښت، د معياري ژبې پر پېژندنې او د ملـــي، دينـــي او فرهنګي ارزښتونو په پياوړتيا کې د هغې په رول وپوهيږي. ښه او رغنده تدريس د زده کړې د عمومي پروګرام يوه برخه ده او ټاکلو موخو ته رسيدل اسانوي.

## د مضمون د تدريس لارښود

ددې لارښود په لومړي ځپرکي کې د درسي مضمون له عمومياتو او لومړنيو خبرو او د تدريس او ارزونـــې لـــه لارو چارو سره بلد شوئ. په دې ځپرکي کې به د تدريس له کلني پلان او د هر لوست د تدريس له لارو چارو سره بلد شئ.

د تدريس کلنی پلان

د تدريس کلنی پلان ځرګندوي چې د لوست کتاب پر يوه تعليمي کال څنګه وويشل شي. زموږ په هېواد کې تعليمي کال د سړو او تودو سيمو لپاره يو له بله توپير کوي. په تودو سيمو کې تعليمي کال د منې د فصل په پيل پيليږي. د مرغومې د مياشتې په دوه اوونيو کې څلور نيم مياشتنۍ ازموينه اخيستل کيږي. وروستۍ دوه اوونۍ زده کوونکي رخصتيږي. د پسرلي د فصل په وروستۍ مياشت، يعنې غبرګولي کې په دوو لومړنيو اوونيو کې ازموينه اخيستل کيږي او له هغـــې وروســـته زده کوونکي د کال وروستي رخصتي اخلي.

په سړو سيمو کې تعليمی کال د وري په لومړۍ پيليږي. څلورنيم مياشتنۍ ازموينه د چنګاښ په مياشت کې اخيســـتل کيږي. زده کوونکي له ازموينې څخه وروسته د زمري په دوو لومړنيو اوونيو کې رخصتيږي. د تعليمي کال په پـــای کـــې د ليندۍ د مياشتې په لومړيو دوو اوونيو کې کلنۍ ازموينې پيليږي او له هغې وروسته زده کوونکي د ژمي په رخصـــتۍ ځـــي. تعليمي کال ۲۸ اوونۍ دوام مومي. د کلني پلان د تنظيم لپاره د لوست د کتاب مخونه پر ۲۸ سرليکونو وېشـــل کيـــږي. لاسته راغلې شمېره په يوې اوونۍ کې د لوست د کتاب د تدريس برخه څرګندوي. د هر لوست په ورځني پلان کې د هـــر لوست د زده کړې موخې، د تدريس او ارزونې لارې چارې، د تدريس توکي، د تدريس فعاليتونه (د لومړنيو فعاليتونو ســـرته رسول، لکه سلام، روغبړ، د حاضرۍ اخيستل، د پخواني لوست پوښتنه، د انګېزې رامنځته کول، د نوي لوســـت وړانـــدې کول او د زده کوونکو د زده کړې ارزول)، د لوست د متن او پای په اړه پوښتنې او د زده کوونکو او ښـــوونکو لپـــاره د اضافي معلوماتو برخه جوړوي. هغه په ځير وګورئ او په پوره زړه سوي او رغنده ډول يې د شونتيا تر کچې پـــر خپلـــو زده کوونکو عملي کړئ. د لسم، يوولسم او دولسم ټولګي د پښتو د لوست کتابونه ۲۸ لوسته لري. هر لوست په يوې اوونـــۍ کې تدرسيږي. د وروستي ساعت په پای کې ښوونکی ډاډ تر لاسه کوي چې زده کوونکي د لوست ټولې موخې تـــر لاســـه کړي دي؛ پوهه يې زياته شوې؛ ژبنۍ وړتيا يې پياوړې شوې او ذهنيت يې مثبت بدلون موندلی دی. په دې موخو کې د ژبـــې زده کړه، خبرې کول او لوستل تر هرڅه دمخه دي.

# لومړی لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | حمد | |
| **د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې)** | – د حمد پر مفهوم او معنا پوهېدل.<br>– د الله جل جلاله د ثنا، صفت او ستاینې په برخه کې د معلوماتو زیاتوالی.<br>– د مخلوقاتو خلقت او د خدای جل جلاله پر حکمت خبرې کول.<br>– لغتونه معنا کول او په جملو کې یې د استعمال مهارت تقویه کول.<br>– په متن کې نوې کلمې او مشکل اصطلاحات موندل، لیکل او معنا کول. | |
| **د تدریس لارې** | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، گروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | |
| **د تدریس وسیلې** | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | |
| **د ارزونې لارې او وسیلې** | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او گروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | |
| **د زده کړې او تدریس فعالیتونه** | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه او د حاضرۍ اخیستل. | ۴ دقیقې |
| **د انگیزې رامنځته کول:** | د لوی خدای جل جلاله د عظمت او د کائیناتو د خلقت په برخه کې له زده کوونکو څخه پوښتنه کول. پر الله جل جلاله د ایمان د راوړلو د گټو په برخه کې پوښتنه او بیا د لوست پیلول. | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی په ښه او شعري ښکلا حمد لولي. | – زده کوونکي د حمد شعرته غوږ نیسي. | |
| – ښوونکی د حمد په سم لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي. | – زده کوونکي په سم ډول حمد لولي. | |
| – ښوونکی زده کوونکو ته معلومات ورکوي چې د پښتنو شاعرانو دیوانونه په حمد یا د الله جل جلاله په ستاینه پیلیږي. | – زده کوونکي په پښتو ادبیاتو کې د شاعرانو له خوا پخپلو دیوانونو کې د حمد د راوړلو او لیکلو په ارزښت ځانونه پوهوي. | |
| – ښوونکی په لنډه توگه د حمد په معنا او مفهوم باندې زده کوونکي پوهوي. | – زده کوونکي د ټولگي په وړاندې د نوبت له مخې د حمد په اړه یوه، دوه دقیقې وینا کوي. | |
| – ښوونکی تر پوښتنو کولو وروسته د ځوابونو د اورېدلو په مهال هم له زده کوونکو سره مرسته کوي. | – زده کوونکي د حمد د شعردیکلمه زده کوي. | |
| – ښوونکی غواړي چې د ټولگي په وړاندې زده کوونکي | – زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. | |

| | |
|---|---|
| راوغوارې او د حمد په اړه خبرې وکړي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته په خواږه او زړه راکښونکې غږ د حمد د شعر دیکلمه کوي.<br>– ښوونکی په څو پوښتنو سره د لوست ارزونه کوي.<br>ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | – زده کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سرته رسوي. |

**اضافي معلومات:**

د پښتو ژبې پیاوړی ادیب، شاعر ، ژباړن او ملوست عبدالقادر خان خټک د نومیالي پوه ، لیکوال، شـاعر، فیلسـوف د تورې او قلم څښتن خوشحال خان خټک په عالمه او علم پالونکې کورنۍ کې سترګې دې نړۍ ته غړولي دي.

عبدالقادر خان خټک په (۱۰۶۳ هــ ق) کال زیږیدلی دی.

عبدالقادر خان خټک د شیخ سعدي د مشهور اثر ګلستان ژباړه په دوو نیمو میاشتو کې بشپړه کړې ده. دی په فارسـي، عربي او هندي ژبو ډېر ښه پوهیده، عبدالقادرخان خټک په هندوستان کې هم څه موده تېره کړې ده او هلته په نقشـبندیه طریقه کې داخل شوی.

د خوشحال خان خټک په کورنۍ کې عبدالقادر د تصوف او عرفان لورې ته ډېره مینه ښکاره کـړې ده چـې د لوسـتي کتاب حمدیه شعر دده له دیوان څخه غوره شوی دی. د تدریس په برخه کې ده پخپله لیکلي دي چې: (اکثـر بـه تنهـا ناست وم کله کله به ځینې یاران راغله، استفاده به یې د علم عربي، فارسي کوله، ځینو دوستانو را څخه ګلستان کتـاب لوست) لنډه دا چې دده زیات عمر په لیکلو، لوستلو، تلقین او تدریس تېر شوی دی لکه چې پخپله وایي:

چې پرې غم غلطوم درې مې محرم دي     یـــــو قلم، دویم کتاب دریم اشعار خپل

دی د پښتو ژبې د پیاوړو شاعرانو په لیکه کې دریږي او د لومړۍ درجې له شاعرانو څخه ګڼل کېږي. څیړونکي د تـاریخ مرصع په استناد د عبدالقادرخان ژوند د (۱۱۲۵) هــ .ق تر جمادی الاول پورې ګڼي.

تألیفات یې: د اشعارو دیوان – یوسف زلیخا – ګلدسته – قصیده برده – څلویښت حدیثونه

**اخځلیکونه:**


– ګلدسته د څیړنو په بهیر کې، د سیمینار د مقالو ټولګه، د پښتو څیړنو نړیوال مرکز، ۱۳۸۷ لــمریز کال، کابل.
– ګلدسته د شیخ سعدی د ګلستان پښتو ژباړه، د محی الدین هاشمي په سریزه، د پښتو څېړنو نړېوالـ مرکـز، ۱۳۸۳ کـال.
– عبدالقادر خان خټک دیوان، د نورالله ولسپال په سریزه، د افغانستان د علومو اکاډمي، دولتي مطبعه، ۱۳۶۸ کـال.

## دویم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | نعت | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | – د حضرت محمدﷺ د ژوند له بېلابېلو اړخونو سره آشنا کېدل.<br>– د حضرت محمدﷺ او د هغه له کورنۍ سره مینه او د نژدې والي احساس پیدا کول.<br>– په لوست کې د نوو کلمو، لغتونو، ترکیبونو او گرامري برخو زده کول.<br>– د لوستلو، لیکنې او علمي فعالیتونو توانایي پیدا کول.<br>– د حضرت محمدﷺ د لوړ مقام او د هغه د سپېڅلې پیغمبرۍ په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>– د حضرت محمدﷺ د ژوند په اړه د زده کوونکو د عواطفو را ژوندي کول.<br>– د لوست د منځپانگې په اړه پوښتنو ته ځوابونه ویل.<br>– په متن کې نوې کلمې، ترکیبونه، گرامري او ستونزمن الفاظ او لغاتونه توضیح کول.<br>– د حضرت محمدﷺ د معجزو پېژندنه. | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، گروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او گروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورنې کارکتنه | ۴ دقیقې |
| د انگیزې رامنځته کول: | هغه کلمې او لغتونه کارول چې په زده کوونکو کې د انگیزې د پیدا کیدو سبب شي. لکه: ټول پیغمبران څو دي؟ وروستی پیغمبرکوم یو دی...؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – د متن په لوستلو کې زده کوونکو ته لارښوونې او د هغوی تشویق او هڅونه چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>– د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیو اصلاح کول.<br>– هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځواب | – د متن لوستل او د کتاب پوښتنو ته سم ځوابونه ویل.<br>– د ټولگي کار تر سره کول.<br>– د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او د سم تلفظ زده کول.<br>– زده کوونکي په وار سره پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>– زده کوونکي له متن څخه عربي، دري او نوې پښتو | |

| | |
|---|---|
| وو ايي.<br>– له زده کوونکو څخه په متن کې د عربي، دري او پښتو کلمو د موندلو په اړه پوښتنې او بيا هغه پر دړه ليکل.<br>– پر تخته د متضادو کلمو ليکل او له زده کوونکو څخه غوښتنه کول چې هغه پخپلو کتابچو کې وليکي.<br>– زده کوونکي پر ډلو ويشل او هرې ډلې ته د فعاليت ټاکل.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته په خواږه او زړه راکښونکي غږ د نعت د شعر ديکلمه کوي.<br>– ښوونکی په څو پوښتنو سره د لوست ارزونه کوی.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | کلمې پيدا کوي، پرتخته يې ليکي او معنا يې په کتابچو کې ليکي.<br>– زده کوونکي متضادې کلمې له تختې څخه پخپلو کتابچو کې ليکي.<br>– زده کوونکي په ډله ييزو فعاليتونو کې برخه اخلي.<br>– زده کوونکي د نعت سم لوستل او د شعر ديکلمه زده کوي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>– زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع پخپلو کتابچو کې ليکي او په کورونو کې ورباندې کار کوي. |

**اضافي معلومات:**

حضرت محمدﷺ د عبدالله زوی او د عبدالمطلب لمسی دی د نړۍ او عالم بشر دغه ستر لارښود په ۵۷۱ م کال د ربيع الاول په دولسمه د دوشنبې په سپيده داغ مهال دې فاني نړۍ ته تشريف راوړ.

خپله مور مبارکه يې بي بي آمنه او رضاعي مور يې بي بي حليمه نومېده چې حضرت محمدﷺ ته به يې شيدې ورکولې.

په شپږ کلنۍ کې يې مور بي بي وفات شوه او اته کلن و چې نيکه يې هم وفات شو. له دې وروسته يې روزنه د هغه تره (ابو طالب) پر غاړه واخيسته. پنځه ويشت کلن و چې له ام المؤمنين بي بي خديجة الکبریؓ سره يې واده وکړ. په څلويښت کلنۍ کې ورته د حراء په سمڅه کې د لوی خدایﷻ له لوري د جبرائيل امينؑ په واسطه د پيغمبرۍ ستر وياړ ابلاغ شو. هغه په امانت او نيک خلق شهرت موند او د دعوت کار يې پيل کړ.

هغه مبارک د اسلام خپرول پيل کړل، په ښځو کې لومړۍ ميرمن بي بي خديجة الکبریؓ، په کوچنيانو کې حضرت علي کرم الله وجهه، په نارينه وو لويانو کې لومړی حضرت ابوبکرصديقؓ مسلمانان شول. حضرت محمدﷺ د پيغمبرۍ په ديارلسم کا ل له مکې څخه مدينې منورې ته هجرت وکړ. هغه مبارک خپل ټول عمر د اسلام په خپراوي کې تېر کړ او د ۶۳ کالو په عمر يې د دوشنبې په ورځ له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

پيغمبرﷺ هغه څوک دی چې الله تعالی د انسانانو له ډلې څخه غوره کړی او د انسانانو د دعوت او لارښوونې لپاره يې راليږلی وي چې انسانان د ناپوهۍ له تيارو څخه راوباسي او په سمه لاره يې روان کړي. يا په بله وينا: پيغبران هغه څوک دي چې ا الله تعالی او بنده ګانو ترمنځ واسطه شی چې مومنانو ته د نيک کار په کولو د ثواب زيری ورکړی او هر نه منونکی د بدو او ناوړو چارو تر سره کوونکي له عذاب څخه ويروي. ټول بايد په دې وپوهيږي چې لومړی پيغمبر حضرت ادمؑ دی او وروستی حضرت محمدﷺ دی چې تر ټولو غوره دی، ټول پيغمبران له ادم ؑ څخه نيولي تر حضرت محمدﷺ پورې برحق او رېښتني دي او د اللهﷻ له لورې د انسانانو د لارښوونې لپاره راليږل شوي دي.

**اخځليکونه:**

آريانا دايرة المعارف، دويم ټوک، د افغانستان د علومو اکاډمي، ۱۳۸۷کال، د نبراسکا مطبعه

# دریم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرح | | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|---|
| | پښتانه او پښتو | | د لوست موضوع |
| | - د پښتنو د قوم او توکم په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>- د پښتو او پښتنو د اصل او ریښې په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>- د لوستلو او غوږ نیولو د مهارت پیاوړي کول.<br>- د ژبنیو مهارتونو پیاوړتیا.<br>- نوې کلمې او لغتونه زده کول. | | د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) |
| | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | | د تدریس لارې |
| | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | | د تدریس وسیلې |
| | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | | د ارزونې لارې او وسیلې |
| ۴ دقیقې | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کارکتنه | | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ۶ دقیقې | ښوونکی دې ددې پوښتنو په واسطه زده کوونکي لوست ته څیر کړي.<br>۱- په افغانستان کې کوم قومونه استوګن دي؟<br>۲- ستاسو له نظره د میشتو قومونو د خیر او سوکالۍ لاره په څه شي کې نغښتې ده؟ | | د انګیزې رامنځته کول: |
| ۳۵ دقیقې | د زده کوونکو فعالیتونه | | د ښوونکي فعالیتونه |
| - زده کوونکي متن ته غوږ نیسي او سم تلفظ زده کوي.<br>- زده کوونکي متن په لوړ غږ لولي او د لوستلو مهارت پیاوړی کوي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي او مهم ټکي پخپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده کوونکي نوی لغاتونه په کتابچو کې لیکي او په مناسبو جملو کې یې کاروي.<br>- زده کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخلي او په ګډه سره تمرینونه حلوي.<br>- زده کوونکي په وار سره پوښتنو ته ځوابونه وایي. | | | - ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>- ښوونکی د متن یوه، یوه برخه په زده کوونکو لولي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته د پښتنو د توکم په اړه په لنډیز سره معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته نوې کلمې له معنا سره په تخته لیکي او له هغوی څخه غواړي چې په جملو کې یې وکاروي.<br>- ښوونکی زده کوونکي په ډلو ویشي او هرې ډله ته د لوست د تمرین د حلولو سپارښتنه کوي.<br>- ښوونکی د زده کوونکو د ارزونې لپاره پوښتنې کوي. |

| – زده کوونکي کورنۍ دنده پخپلو کتابچو کې ليکي او په کورونو کې يې بشپړوي. | – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. |
| --- | --- |

**اضافي معلومات:**

آريايي اقوام چې له خپلې زړې آرينه ويجه يعنې د (آمو) او سير دريا له سرچشمو څخه خپاره شول او په بخدي او بــاختر کې يې مدنيت جوړ کړ، وروسته له دغه ځايه بيا د هند او ايران خواته ولاړل، دوی ځينې مشهور قبايل درلودل. چې لــه هغو څخه يوه مشهوره قبيله پکهت= پښتون وه، ددې نامه تاريخي څېړنه او قدامت د پښتو ژبې اصالت او قــدامت هــم څرګندوي.

پښتون: د باختري آريايانو ډله تر اباسين (اندوس) پورې. او ددوی يو معروف ديني کتاب ويدا تــر اوســه پــاتې دی. دا کتاب د آريايي اقوامو په تاريخ کې ډېر ارزښت لري او د هغه عصر ډېر وقايع څرګندوي او ځکه چې اکثرې برخې يــې زموږ د هېواد په غرو، دريابونو او ځمکو پورې اړه لري او پکې بيان شوې دي، نو محققين د ويدا کتاب زموږ د هېــواد يو پخوانی کتاب ګڼي.

له دې کتابه موږ د هېواد پخواني تاريخي وقايع او حوادث راباسو او هم د ژبې په تاريخ کې ښې ښې استفادې ځنې کوو. خو دلته دومره بس ده چې ويدا د انشاء او ليکلو نېټه تر (۱۴۰۰ق م) پورې رسېږي. که موږ غواړو چې د پښــتو ژبــې تاريخ وپلټو، ناچاره يو لومړی دا ځان ته څرګنده کړو، چې پښتون قوم له کومه وخته په تاريخ کې ځای نيــولی دی او دا ولس پخوانی دی که نوی؟

<u>د لسو ټبرو جګړه او پښتون:</u>

هغه وخت چې آريايي اقوام زموږ د وطن په غرو دښتو او د هند په ځنګلو او ورشوګانو کې سره خپاره شول، د دوی تــر منځ خورا لوی او مشهور جنګ پېښ شو، چې د ويدا په زاړه کتاب کې يې بيان په خورا ښه ډول راغلی او کيفيــت يــې دادی:

(( له آريايي اقوامو څخه د بهارته Bharata قبيله له کوبها يعنې کابل او ارغنداو له ورشوګانو څخه تر خېبر او بولان او نورو لارو تېر شول او د سندهو (اباسين) ورشوګانو ته کښته شول او په هند او پنجاب کې سره خپاره شول، دلته بهارتــه د ټبر پاچا (سوداس) نومېده، چې د (ديواداسا) زوی يا لمسی و. ددې پاچا سره د کوزيکا له علمي او ادبي کورنۍ څخــه يو ريشي[1] او مذهبي مشاور و، چې ويسواميترا Visvamitra نومېده، دې ريشي روحاني قوه، نفوذ او پوهه درلوده، د سوداس پاچا سره يې د ستردو Sturdu (ستلج او ويپاشا Vipasha (بياس) په نيولو او فتوحاتو کې ډېر کومکونه کړي وو، خو وروسته سوداس پاچا دا خپل مذهبي مشاور ليرې کړ او په عوض کې يې بل سړی چې واسيســتاس Vasistas نومېده، مقرر کړ، ددغو دوو تنو ريشيانو ترمنځ مخالفت او جګړه ونښته. د ويو اميترا ډېر قبايل پرخواوو او خلکــو يــې خبره منله، نو ډېر آريايي قبايل يې سره راټول کړل او د سوداس سره يې جګړه وکړه، خو پاچا بريــالی شــو او د انــو Anus او دروهيو Darushni د قبيلو ملکان ووژل شو)).

دا جګړه د پاروشني Parushni (ايراوتي= راوي) پرغاړه پېښه شوې وه. هغه لس آريايي قبيلې چې په دغه جګــړه يــې لاس پورې کړی وو، اکثره هغه قبايل دي، چې تراوسه يې هم بقايا زموږ په هېواد کې شته او داسې ښکاري چې تر دغــې جګړې وروسته دوی د هند ورشوګانو ته لېږد او هجرت بند کړ او دلته پاتې شول، ددغو لسو ټبرونو نومونه دادي:

(۱) پکته Pakthas (پکتويس= پکهت= پښتون)،

(۲) الينا Alinas (د نورستان خلک)،

[1]. ريشي: شاعر او روحاني سړی.

(۳) بهالانا Bhalanas (د بولان د درې خلک)،
(۴) شیوا Shivas (د شیوکې خلک چې د اباسین پرغاړه اوسېدل)،
(۵) ویشانن Vishanins،
(٦) انو Anus چې د پنجاب د راوي رود پرغاړه اوسېدل او د بریګوس مشهوره روحاني کورنۍ د دوی ستانه وو.
(۷) دروهیو Druhyu (د اقوام هم له انو سره اوسېدل).
(۸) توروا‌شا Turvasha.
(۹) یادو Yadus، دا دوې قبیلې سره ملګرې وې.
(۱۰) پورو Purus د ګندهارا د شاوخوا خلک.
داوې لس مشهورې آریایي قبیلې چې د لسو ټبرونو په جګړه کې يې برخه درلوده او لکه محققین چې وايي، اوس له دغو څخه اکثرې قبیلې زموږ په هېواد کې شته او له هغو وختونو څخه تراوسه دلې پرتې دي.
د پکهت وېش:
په دغو آریایي قبایلو کې موږ د ژبې له پلوه فقط له لومړۍ یعنې پکهته سره اړه لرو او له دې تفصیله مو مقصد دادی، چې د پښتون ملت لومړنۍ تاریخي وثیقه دغه ده، چې نوم يې په رېګویدا کې یاد شوی دی او دا څرګندوي چې دا ولس د میلاد (۱۴۰۰) کاله دمخه لاهم موجود وو او په آریایي کورنۍ کې يې نوم او نښان درلود. د پکهت تاریخ په هغو وختونو کې هم ډېر روښ دی او هر څوک يې پېژني. دوی وروسته د پارت Parth په نامه بلل کېده او د قبل المیلاد دریمې پېړۍ په شاوخوا کې د دوی مشر (( ارساس پارتي)) د غرب پلو ته ولاړ او د هري رود غربي خوا ته يې د خزر تر څنډو پورې مدنیت جوړ کړ او هغه ځمکه يې هم په خپل نامه پارتیا Parthia وبلله او هلته دوی د پارت په نامه سلطنت او روښ مدنیت او بېل ثقافت وموند (د ۲۵٦ق، م حدود) یوه بله برخه هم له دغو پښتنو څخه د ارمنستان غربي خواته ورسېده او هورې هم د پکهت (پکتویس) په نامه مشهوره وه او هغه ځای د دوی په نامه (پکتیکا) بلل کېده.

# خلورم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | خبرې اترې | | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | - د کمپیوټر پېژندنه.<br>- د انټرنیټ او کمپیوټر د اهمیت او ارزښت په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>- د کمپیوټر په واسطه کومې چارې تر سره کېږي له هغو سره آشنا کېدل.<br>- د غوږ نیولو او لوستلو د مهارت پیاوړتیا.<br>- په متن کې نوې کلمې او اصطلاحات موندل او د هغو په معنا پوهېدل.<br>- د خبرو کولو او محاورې په برخه کې تجربه ترلاسه کول. | | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کارکتنه | | ٦ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | ښوونکی دې د لاندې پوښتنې په طرح کولو سره زده کوونکي لوست ته متوجه کړي.<br>- ستاسې په اند معلوماتی تیکنالوژي کومه ده؟ او کومه کارونه تر سره کوي؟ | | ٤ دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| - ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې لــه زده کوونکــو ســره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د کمپیوټر د اهمیت او ارزښت په اړه خبــرې اترې کوي.<br>- وروسته ښوونکی دوه تنه زده کوونکي د تختې مخې تــه راغواړي او د محاورې او خبرو اترو په بڼه له هغوی څخــه غواړي چې د کمپیوټر د ارزښت او اهمیت پــه اړه پخپلــه ژبه خبرې وکړي، نور زده کوونکي غوږ ورته نیسي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چې په متن کې | | - زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن پــه لوړ غږ لولي او د کلماتو سم تلفظ زده کوي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي.<br>- څو تنه زده کوونکي د کمپیوټر او څو تنه زده کوونکي د انټرنیت په اړه پخپله خوښــه خبــرې کــوي نــور زده کوونکي غوږ ورته نیسي.<br>- زده کوونکي د لوست نوې کلمې په ګوته کوي او پــه جملو کې تر کارولو وروسته یې په کتابچو کې لیکي.<br>- زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلــي او | |

| نوې کلمې پیدا کړي او په جملو کې یې وکاروي.<br>– ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده کوونکو سره مرسته کوي او زیاتو زده کوونکو ته د خبرو اترو کولو زمینه برابروي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستیو پوښتنو د ځوابونو په اړه لارښوونه کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | د خبرو اترو په ترڅ کې د خبرو کولو مهارت پیاوړی کوي.<br>– زده کوونکي پخپلواک ډول د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>– زده کوونکي کورنۍ دنده پخپلو کورونو کې سرته رسوي. |
|---|---|

**اضافي معلومات:**

د نو لسمې پيړۍ په دويمه نيمايي کې د کمپيوټر رامنځته کېدلو سره د کارونو په تر سره کولو کې خورا مهم بدلون راوست او چارې يې ځو ځلې ګړندۍ کړې ، چې وړاندې يې تصور د بشر له عقل څخه لرې ښکارېده.

نن ورځ کمپيوټر د قلم او کاغذ ځای نيولی او همدارنګه د کمپيوټر په واسطه انځورونه، نقشې، او ډېر ستونزمن او محاسبات په ځو شيبو کې تر سره کېږي.

د کمپيوټر نوم د Comput له کلمې څخه چې د حساب کولو په معنا دی، اخيستل شوی.

په پيل کې له کمپيوټر څخه د حساب کولو لپاره کار واخيستل شو. له همدې کبله کمپيوټر د حساب کوونکي په نوم هم ونومول شو. نن سبا له کمپيوټر څخه د ژوند د بېلابېلو ډګرونو په برخه کې ګټه اخيستل کېږي.

په لنډ ډول د کمپيوټر پيژندنه داسې کولای شو:

کمپيوټر يو الکترونيکي ماشين دی چې ورکړل شوي لومړي معلومات(Data) تر پروسس لاندې نيسي د مخکينيو ورکړل شويو پروګرامونو له مخې لومړني معلومات تحليل او تجزيه کوي او د غوښتنې وړ پايله ډېر ژر په لاس راکوي او يا يې پخپله حافظه او ذخيره کې ساتي.

د قدرت او ګړنديتوب له پلوه د کمپيوټر عمليات پر څلورو ډولونو ويشل کېږي.

۱– ستر کمپيوټرونه Super Computers

۲– ماينې فريم کمپيوټرونه Mini Computers

۳– کوچني کمپيوټرونه Micro Computers

۴_ شخصي کمپيوټرونه Personal Computers (PC)

مايکرو کمپيوټرونه په لاندينيو بڼو موندل کېږي.

- سرميزي کمپيوټرونه Desktop Computers
- د ليږد وړ کمپيوټرونه Portable Computers
- لپ ټاپ کمپيوټرونه Laptop Computers

**اخځليکونه:**

سيد حسن عدليار، د کمپيوټر اساسات، د کابل پوهنتون د ساينس پوهنځي، ۱۳۸۵ کال چاپ.

## پنځم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | پیر محمد کاکړ | | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | - د پښتو له ادب سره اشنایي پیدا کول.<br>- د پښتو ژبې د کلاسیکو شاعرانو په اړه معلومات پیدا کول.<br>- د لوستلو او غوږ نیولو د مهارت پیاوړتیا.<br>- د پیرمحمد کاکړ ژوند لیک او اثارو سره د زده کوونکو بلدیدل.<br>- د پیر محمد کاکړ د شعرونو په لوستلو سره د لوستلو د مهارت پیاوړي کول.<br>- په لوست کې د ګرامر په اړه معلومات ترلاسه کول په تېره بیا د اداتو د کارولو په برخه کې. | | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کارکتنه | | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | د انګیزې د رامنځته کولو لپاره د پیرمحمد کاکړ د شعر یو بیت پر تخته لیکل. ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د شعر په اړه بحث وکړي او شاعر یې پیدا کړي. | | ۶ دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| - ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د پیرمحمد کاکړ د ژوند او شعر په برخه کې زده کوونکو ته په تفصیل سره معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی په لوست کې د نویو کلمو او اصطلاحاتو معنا او مفهوم له زده کوونکو څخه پوښتي او له هغو سره د سم ځواب ویلو په برخه کې هم مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده کوونکی | | - زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن په لوړ غږ لولي او د کلماتو سم تلفظ زده کوي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي او مهم ټکي پخپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده کوونکي د متن نوې کلمې له معنا سره یادوي، په جملو کې یې کاروي او پخپلو کتابچو کې یې هم لیکي.<br>- زده کوونکي دپیرمحمد کاکړ د ژوند په اړه معلومات وړاندې کوي. | |

| | |
|---|---|
| هڅوي چې د پیرمحمدکاکړ په اړه خبرې وکړي.<br>– ښوونکی د ګرامری پوښتنو او د متن د وروستۍ برخې د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>– ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي.<br>– ښوونکی په ځو پوښتنو سره زده کوونکي ارزوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | – زده کوونکي د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته پخپلواک ډول ځوابونه وایي.<br>– زده کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي په وار سره د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه وایي.<br>– زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع پخپلو کتابچو کې لیکي او په کورونو کې یې بشپړه وي. |

**اضافي معلومات:**

پیر محمد د پښتو ادب نومیالی شاعر په قوم کاکړ او اصلی ځای یې (ږوب) و. دده د زیږېدولو نېټه په یقیني توګه څرګنده نه ده. د اټکل له مخې کېدای شي چې په (۱۱۲۰ هـ ق) کا ل کې زیږېدلی وي، ځکه چې دې د احمدشاه بابا معاصر دی، د احمد شاه بابا په وختو یې شعر وایه او پخپله د احمدشاه بابا د زوی شهزاده سلیمان استاد و، نو په دې توګه چې له یوې خوا احمدشاه بابا په (۱۱۶۱ هـ) کال په تخت کېناستلی دی او له بلې خوا د پیرمحمد د اشعارو په استناد په دې وخت کې پیرمحمد سپین ږیری و، نو ځکه به دده د زیږېدو پورتنۍ نېټه له حقیقت څخه لرې نه وي. دی خپل سپین ږیرتوب داسې بیانوي:

ښه موسم د شباب تېر پر پیرمحمد شو　　　بوالهوس هنوز هوا د ګل ومل کا

دده ژوند تر ۱۱۹۶ هـ پورې یقیني دی، ځکه چې ده خپل دیوان په همدې کال کې بشپړ کړی دی او د تاریخ په اړه یې وایي:

زر سل شپږ نوي کلونه　　　د هجرت تېر شوي ونه

ما انشاء د عشق دیوان کړ　　　په پښتو مې ښه بیان کړ

په دی طمع چې یادګار شي　　　بیا مشهور په هر دیار شي

په دعا وربانديې یاد شم　　　سخت عذاب څخه آزاد شم

پیرمحمد کاکړ تر ۱۲۰۳ هـ کال دمخه وفات شوی دی، ځکه چې په همدې کا ل دده شاګرد ابراهیم خان کاکړ دده دیوان نقل کړی دی. پخپله خاتمه کې پیرمحمد کاکړ په داسې صیغه یادوي چې د پیرمحمد مرګ ښه ځنې ثابتېږي.

د پیرمحمد اشعار د بیلتانه، جدایي، فراق او داسې نورو موضوعاتو لرونکي دي، د شعر په منځپانګه کې یې همدغه مفاهیم نغښتل شوي دي.

چې په هجرکې غزل زه پیرمحمد کښم　　　لوند په اوښو یې کاغذ شو قلم سوځي

وکښه غم د بیلتانه د زړه په وینو　　　چې په لاس کې پیرمحمد قلم اخلي

تر قلم یې وینې څاځي له حسرته　　　پرکاغذ چې پیرمحمد دعشق رقم ږدي

جدایي په غم شریک کړم د غمجنو　　　د هرچا پر غاړه ژاړم لکه نی

لنډه دا چې د پیرمحمد اشعار ساده او روان دي، پخپلو شعرونو کې یې پښتنې اصطلاحات کارولي دي. همدارنګه په اشعارو کې یې خورا زیات ادبي صنعتونه هم کارولي دي او په دغه برخه کې یې هم لوی لاس درلود.

خراب دل مې له دې غمه په تنګ راغی        ګویا تنګ له خپله عمـــــــــره پتنګ راغی

پیرمحمد کاکړ شهزاده سلیمان او د شاهي کورنۍ غړیو ته ددینی تدریس ترڅنګه د پښتو ژبې تدریس هم کاوه. پیرمحمد کاکړ لومړنی شخص دی چې د پښتو ژبې لومړنی ګرامر یې ولیکلو. دغه ګرامر (معرفت الافغاني) نومیږي چې په ۱۳۵٦هــ. ش کال په کابل کې چاپ شوی دی.

د پیر محمد کاکړ له دیوان څخه غور چاڼ:

| | |
|---|---|
| الهـــــي توفیـــــق د حمــــــد و ثنـــــا را | پــه ثنــا کــې تــر بلبــل ژبــه ګویــا را |
| چې ققنس غوندې پر ځای بانــدې ایــرې شــم | ســـوز ګـــداز د حجــت هســـې ومـــا را |
| ګهی خــوف ګهــی رجــا زمــا پیشــه کــړه | ګهـــی مـــاو تـــه ژړا ګهـــی خنـــدا را |
| په دنیا کــې چــې رحمــت و کــل عــالم دی | په عقبــا کــې هــم هغــه رســول پېشــوا را |
| منـــور مـــې زړه پـــه نـــور د معرفـــت کـــړه | پــه تاریکــه تــوره خونــه کــې رڼــا را |
| پـــر ړانـــده خـــو د دیـــدار لـــذت حـــرام دی | و ما خـــوار تـــه د دیـــدار ســـترګې بینـــا را |
| پخپـــل فضـــل هـــدایت راتـــه عطـــا کـــړه | بیـــا نجـــات لـــه کـــج روۍ د خطـــا را |
| شک و ریب[2] مې کړه لــه دلــه څخــه محــوه | لـــه امراضـــو د مهلـــک جهـــل شـــفا را |

سزا وار که هرڅـــو زه ((پیـــر محمـــد)) نـــه یـــم
دا همـــــــه واړه کریمـــــــه تـــــــه وریـــــــا را

**اخځلیکونه:**

د پیرمحمد کاکړ دیوان، د عبدالرؤف بینوا په مقابله او تصحیح. ۱۳۲۵ کال، کابل دولتي مطبعه.
عبدالرؤف بېنوا پښتانه شعراء، دریم ټوک، د پښتو د پراختیا د آمریت لخوا، کابل، دولتي مطبعه.

[2]. ریب: شک

# شپږم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
| --- | --- | --- |
| د لوست موضوع | د پښتو ادب معاصره دوره. | |
| د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې) | – د پښتو ادب د معاصرې دورې په اړه معلومات تر لاسه کول.<br>– د پښتو د ادبياتو له تاريخ سره اشنايي پيدا کول.<br>– د پښتو د ليکني ادب د پرمختيا او پياوړتيا په برخه کې وړ معلومات ترلاسه کول.<br>– د غوږ نيولو او لوستلو د مهارت پياوړي کول.<br>– د نويو لغتونو او کلمو په مفهوم پوهېدل. | |
| د تدريس لارې | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعاليتونه، فردي فعاليت | |
| د تدريس وسيلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو او ګروپي کارځارل او پايلې يې په کتابچه کې ياداشت کول. | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | لومړنی فعاليت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقيقې |
| د انګيزې رامنځته کول | ښوونکی دې د لاندې پوښتنې په وړاندې کولو سره زده کوونکي لوست ته ځير کړي.<br>– تاسو د ادبياتو د تاريخ له اصطلاح سره بلد ياست؟<br>– ادب تاريخ له څه څخه بحث کوي؟ | ۶ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
| --- | --- | --- |
| – ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د پښتو ادب معاصرې دورې لوست په څو برخو ويشي، هره برخه يې په زده کوونکو لولي او له دوی څخه يې مقصد پوښتي.<br>– ښوونکی په عمومي توګه د معاصرې دورې په اړه معلومات وړاندې کوي.<br>– ښوونکی د معاصرې دورې د شاعرانو او ليکوالانو په | – زده کوونکي متن ته غوږ نيسي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن په لوړ غږ لولي او سم تلفظ زده کوي.<br>– زده کوونکي په وار سره خپله خپله برخه متن لولي او بيا يې لنډيز پخپلو خبرو کې څرګندوي.<br>– زده کوونکي د پښتو ادب د معاصرې دورې په برخه کې معلومات تر لاسه کوي.<br>– زده کوونکي د معاصرې دورې د شاعرانو او ليکوالانو له پيژندلو څخه وروسته پوښتنو ته ځوابونه وايي. | |

| | |
|---|---|
| اړه پوښتنې کوي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستۍ برخې د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی زده کوونکي په ډلو ویشي او هرې ډلې ته یو، یو فعالیت سپاري.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | - زده کوونکي اړوندو پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>- زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع پخپلو کتابچو کې لیکي او په کورونو کې یې سرته رسوي. |

**اضافي معلومات:**

د هرې ژبې او ولس ادبي تاریخ په بېلابېلو دورو ویشل کېږي، نو د همدې معیار له مخې پښتو ادبي تاریخ هم په درېیو سترو دورو ویشل شو، چې لومړۍ یا لرغونې، دویمه (کلاسیکه یا منځنۍ) دوره او دریمه یا معاصره ده. لرغونې او کلاسیکه دوره مو مخکنیو ټولګیو کې لوستي دي، دلته د پښتو ژبې د معاصرې ادبي دورې په اړه معلومات وړاندې کوو.

د پښتو ادب د دریمې یا معاصرې دورې د پیلامې په برخه کې بېلابېل نظرونه وړاندې شوي، ځینې ددغې دورې پیل هند ته د انګریزانو د راتګ وخت ګڼي، ځینې نورو بیا زموږ پر هېواد باندې د انګرېزانو لومړنی یرغل (۱۸۳۹م) د پښتو معاصر ادب پیلامه بللې ده.

ځینو څېړونکو د نولسمې پېړۍ په اویا یمو کلونو کې د پښتو هنري- ادبي نثر پیدایښت د پښتو د معاصر ادب پیلامه بللې ده. همدارنګه ځینو څېړونکو د پښتو د معاصر ادب د ودې او پرمختیا لومړنی پړاو د امیرحبیب الله خان په عصر کې د سراج الاخبار رامنځته کېدل بولي.

خو د پښتو ادب زیاتره څېړونکي په دې خبره یوه خوله دي چې د پښتو د معاصر ادب د رامنځته کېدو لپاره د نولسمې پېړۍ په اویا یمو کلونو کې لارې چارې اوشرایط برابر شوي دي. دا وخت زموږ په هېواد کې د امیر شیرعلی خان د دویمې پلا واکمنۍ سره برابر دی. امیر شیر علی خان چې په (۱۲۸۶ هـ ق) د هند د امبالې له کنفرانس څخه را وګرځېد، نو کورنیو اصلاحاتو ته یې خپله پاملرنه واړوله او یو لړ داسې اصلاحات یې تر لاس لاندې ونیول، چې په هغو کې د ځمکو مالیاتو اصلاح او سمون، د پوستې عصري سیستم تاسیس، عسکري تشکیلاتو عصري ښوونځیو او روغتونو رامنځته کول او ځینې نور بدلونونه شامل وو، همدغه مهال امیر خپلې ملي ژبې پښتو ته هم پاملرنه وکړه او په دې لړ کې یې هغه لومړی ګام چې پورته کړ، هغه د هېواد د ملکي ادارو نومونه، عسکري رتبې، اصطلاحات او قوماندې وې چې په پښتو ژبه واړول شوې.

د امیر د فرمان له مخې د عسکري قواعدو کتاب قاضي عبدالقادر په پښتو ژبه وژباړه او چاپ شو.

ځینې څېړونکي وايي چې د پښتو معاصره دوره د نولسمې پېړۍ له اویایمې څخه پیل او تر نن را رسېږي چې بېلابېل پړاوونه لري.

- لومړی پړاو(۱۸۷۰- ۱۹۰۱م):

د پښتو د معاصرې ادبي دورې لومړی پړاو په زماني لحاظ د نولسمې عیسوي پېړۍ له اویایمو کلونو څخه پیل او د شلمې پېړۍ تر پیلامې یا د امیرحبیب الله د واکمن کېدو تر وخته رسېږي.

- دویم پړاو:

په دغه پړاو کې د پښتو ادبیاتو د ودې او پرمختیا بهیر په دوو برخو کې مطالعه کیدای شي.

الف: په سراجیه عصر کې د پښتو ادب وده او پرمختیا(۱۹۰۱- ۱۹۱۹م).

ب: په اماني عصر کې د پښتو ادب وده او پرمختیا.

دریم پړاو:

په هېواد کې د کورني ګډوډیو (۱۳۰۷– ۱۳۰۸لمریز) وروسته د محمدنادرخان په واکمنۍ کې په ۱۳۱۰ لمریز کال په کابل کې ادبي انجمن او په ۱۳۱۱ لمریز کال په کندهار کې د پښتو ادبي انجمن جوړ شو. کابل ادبي انجمن د کابل په نامه او کندهار ادبي انجمن د پښتو په نامه مجله خپروله. وروسته بیا دواړه انجمنونه یو ځای او په ۱۳۱٦ لمریز کال پښتو ټولنه ور څخه جوړه شوه ، چې د پښتو ژبې په وده او پرمختیا او د لیکوالانو په روزنه کې یې ډېره ارزښتمنه ونډه درلوده. ددې دورې په نومیالیو ادیبانو کې د علامه عبدالحی حبیبي، استاد قیام الدین خادم، استاد ګل پاچا الفت، عبدالرحمن پژواک، عبدالشکور رشاد، استاد عبدالروف بینوا، پوهاند صدیق الله رښتین او نورو نومونه د بیلګې په توګه یادولی شو.

د رواني لمریزې پیړۍ په دریمه لسیزه (۱۳۲۴ لمریز کال، د ویښ زلمیانو د سیاسي ډلې او وروسته د شاه محمود خان د صدارت د دورې دیموکراسۍ او بیا وروسته د ۱۳۴۳ لمریز کال د نوي اساسي قانون په رڼا کې د معاصرو ادبیاتو د پراختیا زمینې برابرې شوې، دغې دیموکراسۍ آزادو خپرونو او مطبوعاتو ته لاره برابره کړه، چې د پښتو ژبې او ادبیاتو د ودې او ایجاد په بهیر کې یې ډېره ارزښتمنه ونډه لرلې ده.

د پښتو ادبیاتو د معاصرې دورې د پیل په اړه ډېر څیړونکي په یوه خوله دي چې معاصره دوره د امیرحبیب الله خان په وخت کې د سراج الاخبار د دویم ځل خپریدو (۱۹۱۱) میلادی سره پیل کیږي چې تر ننه را رسیږي.

اوس د پښتو ادب پرمختیایي بهیر په ګړندیتوب سره پرمخ روان دی، پښتو په ډېله ییزو چاپي او غږیزو رسنیو کې په ملي او نړیواله کچه خپروني لري. په افغانستان، پښتونخوا او نورو هېوادونو کې زیاتي دولتي او ازادې فرهنګي ادارې د پښتو ژبې د ودې او پرمختیا لپاره کار کوي. زیات شمېر لیکوالان او شاعران پخپلو ادبي او فرهنګي فعالیتونو بوخت دي. پښتو ژبه او ادب د پرمختیا په حال کې ده.

**اخځلیکونه:**

ـ پوهاند علامه عبدالحی حبیبي، د پښتو ادبیاتو تاریخ، لومړی او دویم ټوک، ۱۳۸۴ کال، دانش خپرندویه ټولنه– پېښور.

ـ استاد محمد صدیق (روهي) پښتو ادبیاتو تاریخ معاصره دوره

# اووم لوست

## د تدريس د لارښود پلان

## د تدريس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | گلدسته | |
| د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې) | – د گلدستې د اثر په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>– د پښتو د کلاسيک ادب د پياوړي ليکوال عبدالقادرخان خټک له ژوند او آثارو سره اشنايي پيدا کول.<br>– د شيخ سعدي د گلستان په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>– د لوستلو او غوږ نيولو مهارت پياوړي کول.<br>– د لوست گرامري برخې زده کول. | |
| د تدريس لارې | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، گروپي فعاليتونه او فردي فعاليت | |
| د تدريس وسيلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو او گروپي کارڅارل او پايلې يې په کتابچه کې ياداشت کول. | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | لومړنی فعاليت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقيقې |
| د انگيزې رامنځته کول | ښوونکی دې د لاندې پوښتنې په کولو سره لوست ته لاره هواره کړي او زده کوونکي دې بحث ته وهڅوي.<br>– آيا گلدسته د گلانو غونچې ته وايي او که په دې نوم کوم کتاب هم پيژنئ؟ | ۶ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د گلدستې د اثر په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي او د عبدالقادر خان خټک د ژباړې ځانگړتياوو په اړه هر اړخيز معلومات وړاندې کوي.<br>– ښوونکی پر تخته نوې کلمې ليکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې په جملو کې يې وکاروي.<br>– ښوونکی د وينا لپاره د ټولگي په وړاندې زده کوونکي | – زده کوونکي متن ته غوږ نيسي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن په لوړ غږ لولي او سم تلفظ ته متوجه کيږي.<br>– زده کوونکي د عبدالقادر خان او گلدستې په اړه معلومات ترلاسه کوي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي د خبرو په بهير کې د گلدستې د ژباړې په برخه کې هر اړخيز معلومات تر لاسه کوي.<br>– زده کوونکي د متن نوې کلمې په جملو کې کاروي او بيا يې پخپلو کتابچو کې ياداشت کوي. | |

| | |
|---|---|
| هځوي چې د گلدستې د کتاب په اړه خبرې وکړي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستۍ برخې د پوښتنو د ځوابونو لپاره لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنې کوي او د زده کوونکو ارزونه کوي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | - زده کوونکي په وار سره د ټولگي مخې ته راځي او د گلدستې په اړه خبرې کوي.<br>- زده کوونکي د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته پخپلواک ډول ځوابونه وايي.<br>- زده کوونکي پوښتنوته ځوابونه وايي.<br>- زده کوونکي کورنۍدنده پخپلوکتابچو کې یاداشت کوي او په کورونو کې سرته رسوي. |

**اضافي معلومات:**

د گلدستې اثر په دې وروستيو کې د افغانستان د علومو اکاډمۍ د پښتو څېړنو د نړيوال مرکز له خوا په ښکلي قطع او صحافت چاپ شوی دی، د گلستان پښتو ژباړه چې عبدالقادر خان د گلدستې نوم پرې ايښی دی په پښتو ژبه کې دغه ادبي، علمي او عرفاني اثر ډېر مينه وال او لوستونکي لري، په اتو بابونو يا فصلونو کې بشپړ شوی دی، چې د پاچهانو، درويشانو، قناعت، خاموشي، عشق، ځواني، زړښت او کمزورۍ د تربيت يا ښوونې روزنې او د خبرو کولو اداب او نور گټور ټولنيز مسايل پکې په خورا خوږه او ساده ژبه بيان شوي دي.

عبدالقادرخان خټک د سعدي د شاهکار اثر(گلستان) ژباړه له ټولو لفظي، معنوي او ادبي ظرافتونو او نزاکتونو سره په ډېره خوږه او روانه ادبي ژبه په داسې ښه سرته رسولې چې د نوموړي د لوړ علمي او ادبي استعداد ډېره ښه پيژندويي او څرگندويي ور څخه کېدای شي.

عبدالقادر خان خټک چې د خپلې ژبې او ادبياتو د ودې لپاره کوم کارونه کړي دي هغه پخپله د ده مقام مور ته راڅرگندوي.

- که څوک د پښتو شعر تاريخ ليکي، نو د يوو لسمې پيړۍ د پای او د دولسمې پيړۍ د پيل د اشعارو د تفسير او تحليل په لړ کې به عبدالقادر خان له خپلو مليحو اشعارو سره نه هيروي.

- که د پښتو نثر تاريخ ليکل کېږي، نو د پښتو د نثر د تحول په پړاوونو کې به ضرور د عبدالقادر خان په نثري ايجاداتو خبرې کيږي.

- د ژباړو د تاريخ ليکونکي به د پښتنو د فرهنگ په وده کې د عبدالقادر خان د ژباړو په نقش خبرې کوي او دا به خامخا ليکي چې عبدالقادر خان هماغه مهال دا اړتيا حس کړې وه چې د فارسي گلستان او يوسف زليخا، آثار وژباړي او همدارنگه له عربي څخه د حضرت محمدﷺ څلوېښت حديثونه په پښتو ژبه وژباړي.

د عبدالقادر خان د ادبي شهرت په اړه دا خبره هم د يادونې وړ ده چې نوموړيپخپلو اشعارو کې زياتره خپل نوم عبدالقادر راوړي، خو کله يې د تخلص په توگه کرلاني او خټک هم کارولی دی، لکه په دې بيتونو کې:

نه له چا يی طمع شي نه له چا ويره

څو خبرې رښتيا کړې کرلاني، دي

زه خټک ديار په غم تازه تازه شوم

غوريه خيل رحمان که شو ورځنې ستړي

په پخوانيو منابعو کې لومړنی اثر چې مور ته د عبدالقادر خان خټک د آثارو په اړه معلومات راکوي هغه د محمدهوتک پټه خزانه(۱۱۴۱-۱۱۴۲) هـ . ق تاليف) دی، محمد هوتک په دې اړه ليکي:

عبدالقادر خان د شعر ديوان لري او د يوسف زليخا قصه يي په سنه ۱۱۱۲ هجري کې نظم کړه، نصحيت نامه يې هم

په پښتو وکښله او د شیخ مصلح الدین سعدي ګلستان یې په پښتو راواړوه. په سنه ۱۱۱۵ هـ .ق یې یو بل کتاب نظم کا، چې نوم یې دی حدیقه ختک.

د محمد هوتک پر څرګندونو کې د اشعارو دیوان او حدیقهٔ ختک دوه ځانګړي آثار کښل شوې چې اوس دا جوته شوې چې حدیقه ختک د عبدالقادر خان د دیوان نوم دی، نه د هغه ځانګړی اثر د عبدالقادر خان ختک دا لاندې شپږ آثار تر اوسه موږ ته معلوم دي.

- د اشعارو دیوان یا حدیقه ختک
- نصحیت نامه
- څلوېښت حدیثونه
- قصیده برده
- یوسف زلیخا
- ګلدسته.

د یادونې وړ ده چې د عبدالقادر خان ختک په دغو یاد شویو آثارو کې له دیوان او نصیحت نامې پرته نور ټول ژباړې دي، دلته د ګلستان او د عبدالقادر خان د ژباړې یا ګلدستې یوه بیلګه لیکو:

ګلستان:(منت مر خدای را عزوجل که طاعتش موجب قربت است و به شکر اندرش مزید نعمت، هر نفسی که فرو می رود. ممد حیات است و چون بر آید مفرح ذات، پس در هر نفسي دو نعمت موجود است و بر هرنعمی شکری واجب).

په ګلدسته کې دا پورتنی متن په داسې خوږه او ساده ژبه ژباړل شوی دی.

(ثنا صفت خدای لره جل جلا له عم نواله چې طاعت یې موجب د قربت دی او شکر یې په نعمت سبب د زیاتېدو د نعمت، هره سا چې کښته شي، ممد د ژوندون ده، چې راپورته شي خوشی د وجود پس په هر نعمت کې دوه نعمته موجود دي، په هر نعمت شکر لازم).

**اخځلیکونه:**

- د عبدالقادر خان ختک، ګلدسته، د افغانستان د علومو اکاډمۍ د پښتو څېړنو نړېوال مرکز، ۱۳۸۳ کال، کابل ډاکټر مهجور خویشکی، د عبدالقادر خان حدیقه ختک، د پېښور چاپ.

## اتم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | علامه پوهاند عبدالحی حبیبي | | |
| د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | – د پښتو له معاصرو ادبیاتو سره آشنایي پیدا کول.<br>– د علامه پوهاند عبدالحی حبیبي په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>– د پښتو د ادبیاتو، پښتنو شاعرانو، د افغانستان د تاریخ په اړه د زیاتو آثارو له نومونو سره آشنایي پیدا کول.<br>– د لوستلو او غوږ نیولو د مهارت پیاوړي کول.<br>– په لوست کې د نویو کلمو او اصطلاحاتو په معنا پوهېدل.<br>– د نویو لغتونو او کلمو په مفهوم پوهېدل. | | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردی فعالیت | | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | ښوونکی دې د دغې پوښتنې په کولو سره زده کوونکي بحث ته وهڅوي چې د لوست عنوان پیدا کړي.<br>آیا تاسو د پښتو ژبې داسې لیکوال او ادیب پیژنئ چې تر خپل قد او ونې څخه یې د اثارو او تالیفاتو کتار لوړ وي؟ | | ۶ دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br><br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د پوهاند عبدالحی حبیبي لوست څو ځله په زده کوونکو تکراروي او د هغه د آثارو په اړه هم زده کوونکو ته معلومات وړاندې کوي.<br>– ښوونکی د ټولګي زده کوونکي په دوو ډلو ویشي، یوې ډلې ته دنده ورکوي چې د پوهاند عبدالحی حبیبي د ژوند او افکارو په اړه پخپله ژبه خبرې وکړي او بلې ډلې | | – زده کوونکي متن ته غوږ نیسي او د ښوونکی تلفظ ته ځیر کیږي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن په لوړ غږ لولي، سم تلفظ زده کوي.<br>– زده کوونکي د متن یوه، یوه برخه لولي او د پوهاند عبدالحي حبیبي له کتابونو سره اشنا کیږي.<br><br>– زده کوونکي د ډله ییزو فعالیتونو په ترځ کې د استاد حبیبي د ژوند، آثارو او افکارو په اړه خبرې کوي. | |

| | |
|---|---|
| ته دنده ورکوي چې د استاد حبيبي د څو مشهورو آثارو نومونه واخلي. | |
| – ښوونکی زده کوونکو ته د نويو کلمو د معنا کولو او په جملو کې د کارولو سپارښتنه کوي. | – زده کوونکي د متن نوې کلمې معنا کوي او په جملو کې يې کاروي. |
| – ښوونکی د ځوابونو په ويلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي. | – زده کوونکي وار سره د پوهاند حبيبي د ژوند او ادبي فعاليتونو په اړه خبرې کوي. |
| – ښوونکی د وينا لپاره د ټولگي په وړاندې زده کوونکي هڅوي چې د پوهاند حبيبي په اړه خبرې وکړي. | – زده کوونکي د متن لنډيز ته غوږ نيسي. |
| – ښوونکی د لوست لنډيز بيانوي. | – زده کوونکي د متن د وروستۍ برخې پوښتنې ځوابوي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستۍ برخې د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. | – زده کوونکي کورنۍ دنده ياداشت کوي او پخپلو کورونو کې يې سرته رسوي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | |

**اضافي معلومات:**

د هېواد نوميالی عالم، مؤرخ، اديب، ليکوال او شاعر علامه پوهاند عبدالحی حبيبي د ۱۲۸۹ هـ لمريز کال د کندهار ښار د باميزو په سيمه کې په يوه عالمه او فاضله کورنۍ کې زېږېدلی، پلار يې ملاعبدالحق اخوندزاده د خپل وخت نامتو او مشهور عالم عبدالرحيم آخوندزاده زوی او د علامه حبيب الله محقق کندهاري لمسی و.

استاد حبيبي پر ۱۲۹۹ لمريز کال د کندهارد شالمار په لومړني ښوونځي کې شامل شو او ددې ترڅنگ يې په خصوصي توگه د مروجو ديني، ادبي علومو او فنونو زده کړه هم پيل کړه.

په ۱۳۰۴ لمريز کال له نوموړي ښوونځي څخه فارغ شو او په خصوصي توگه يې د ديني او عصري علومو او فنونو لوستلو ته دوام ورکړ، فقه، حديث، تفسير، منطق، صرف، نحو، فصاحت، بلاغت او د نړۍ د مشهورو پوهانو او ادبيانو د نظم او نثر ډېر کتابونه يې ولوستل. په ۱۳۰۴ هـ لمريز کال علامه استاد حبيبي (۱۵) کلن زلمی و چې د کندهار ښار په يوه ښوونځي کې يې د ښوونکي په توگه خپله رسمي او دولتي دنده پيل کړه، څه موده په همدغه دنده بوخت و.

په ۱۳۰۶ لمريز کال په کندهار کې د خپرېدونکې جريدې، طلوع افغان، مرستيال شو، څلور کاله يې په ډېره بريالۍ توگه دغه دنده ترسره کړه او وروسته بيا په ۱۳۱۰ لمريز کال د طلوع افغان د جريدې مسؤول مدير شو.

استاد حبيبي په همدغه موده کې د خپل مطبوعاتي او ژورناليستيکي کار تر څنگ په پرله پسې توگه علمي، تاريخي، ادبي او څېړنيزو ليکنو ته دوام ورکړ. په ۱۳۱۹ لمريز کال کابل ته را وغوښتل شو او د پښتو ټولنې لوی مدير مقرر شو او ترڅنگ يې د مطبوعاتو د مستقل رياست د مرستيالۍ چارې هم پرمخ بيولې. په ۱۳۲۰ لمريز کال د پوهنې وزارت مشاور شو او درې کاله يې دغه دنده تر سره کړه، کله چې په ۱۳۲۳ لمريز کال د کابل پوهنتون په چوکاټ کې د دوي په هلو ځلو د ادبياتو پوهنځی جوړ شوه، نو د رياست او د پښتو ادبياتو د تاريخ د تدريس چارې هم ورته وسپارل شوې. په ۱۳۲۷ لمريز کا ل د ملي شورا د اوومې دورې لپاره د کندهار د خلکو د وکيل په توگه وټاکل شو. تر ۱۳۳۰ لمريز کال پورې يې دغه له مسووليته ډکه دنده په ښه توگه سرته ورسوله ، د همدغه کال په اوږدو کې د هېواد پالنې او آزادۍ غوښتنې د سياسي مبارزې په سبب جبرا خپل هېواد پرېښودو ته اړ کړای شو او نږدې لس کاله يې په جلا وطنۍ کې تېر کړل. څه موده يې په پېښور کې تېره کړه او د (آزاد افغانستان) په نامه يې يوه جريده خپروله، وروسته بيا د ځينو سياسي ملحوظاتو له مخې مجبور شو چې له پيښور څخه ووځي. هماغه و چې کراچۍ ته ولاړ او هلته په علمي او ادبي فعاليتونو بوخت شو.

استاد پوهاند عبدالحی حبيبي ته په ۱۳۴۰ لمريز کال ددې زمينه برابره شوه، چې خپل هېواد ته راستون شي، د پخوا په څېر بيا پخپلو علمي او فرهنگي فعاليتونو بوخت شي. پوهاند حبيبي په ۱۳۴۱ لمريز کال د کابل پوهنتون د ادبياتو په پوهنځي کې د

استاد په توگه مقرر شو او په ۱۳۴۴ کال یې د پوهاندۍ علمي رتبه هم ترلاسه کړه. علامه حبیبي پـه ۱۳۴۵ لمریـز کـال د تاریخ ټولنې د رئیس په توگه وگومارل شو او له دې لارې یې د افغانستان تاریخ ته ډېر خدمتونه وکړل.
نوموړی په ۱۳۵۱ لمریز کال د صدراعظم د فرهنگي مشاور په توگه وټاکل شو. د خپل عمر په وروستۍ لسیزه کې یـې له رسمي او دولتي دندې څخه تقاعد وکړ او د کابل په پوهنتون کې استاد، د اطلاعاتو او کلتـور وزارت مشـاور او د افغانستان د علومو اکاډمۍ غړی و چې ددې ترڅنگ پر علمي، تاریخي او ادبي څېړنو باندې بوخت و.
علامه پوهاند عبدالحی حبیبي ۵۶ کاله د هېواد په علمي او فرهنگي ادارو کې د علم او فرهنگ خدمت کړی دی، زیـات شمېر شاعران، لیکوالان او څېړونکي د دوي په مستقیمه لارښوونه، هڅو، پاملرنه او یا د دوي د آثـارو او افکـارو پـه لوستلو روزل شوي دي، علامه حبیبي شاعر هم و، په پښتو او دري ژبو یې شعرونه چاپ شوي دي، خو زیاتره پاملرنه یې علمي او څېړنیزو لیکنو ته وه، د ټولو چاپ شویو کتابونو شمېر یې(۱۱۵) ښودل شوي دي، چې هر یو یې په خپل ځـای کې علمي، ادبي او تاریخي ارزښت لري، د هغو له ډلې څخه د ځینو نومونه دادي:

- جغرافیای تاریخی افغانستان
- زبان دو هزارساله افغانستان یا مادر زبان دری
- پښتو نثر ته کره کتنه
- د پښتو د نوي ادب لارې
- د پښتو ادب په تاریخ کې قصیده
- روابط ادبی هند با افغانستان
- د پښتو ادبیاتو تاریخ (لومړی او دویم ټوک)
- افغانستان بعد از اسلام
- تاریخچه ادبیات پشتو
- پښتانه شعرا (لومړی ټوک)
- تاریخ افغانستان در عصر تیموریان
- نومورکي مورخین
- تاریخ مختصر افغانستان
- رهنمای تاریخ افغانستان
- جنبش مشروطیت درافغانستان
- تاریخ خط و نوشته های کهن افغانستان
- پشتو ولویکان غزنه
- د افغانستان پیښلیک (لومړی ټوک)
- هنر عصر تیموریان
- نسب و زادگاه سیدجمال الدین افغان

دغه پیاوړی مؤرخ، ملي ادیب، د علم او فرهنگ ریښتینی خدمتگار د ۱۳۶۳ لمریز کا ل د ثور د میاشتې په شلمه نېټـه له دغې نړۍ څخه د تل لپاره خپلې سترگې پټې کړې او د کابل په شهدای صالحین کې خاورو ته وسپارل شـو. د هغـو فرهنگي او علمي خدمتونو له برکته چې د خپل خواږه عمر په اوږدو کې یې تر سره کړي دي، تل به د هېواد د خلکو پـه زړونو کې ژوندی او په ښه نوم به یې یادونه کېږي وايي(مېړونه مري نومونه یې پاتې کېږي).

**اخځلیکونه:**

– عبدالرؤف بېنوا، اوسني لیکوال دویم ټوک، د اطلاعاتو او کلتور وزارت خپرونه.
– د لوی استاد یاد، د علمي څېړنیز سیمینار د مقالو ټولگه د افغانستان د علومو اکاډمۍ له خوا کابل، دولتي مطبعه.

## نهم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرح | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | هوايي ډګر ته د ورتللو او په الوتکه کې د سفر کولو لارښوونې (خبرې اترې) | د لوست موضوع |
| | – د هوايي ډګر په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>– د الوتکې د ارزښت او هوسا سفر په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>– د خبرو کولو د مهارت پیاوړتیا.<br>– د غوږ نیولو او لوستلو د مهارت پیاوړتیا.<br>– په متن کې د نویو کلمو او لغتونو په اړه د پوهاوي د کچې لوړېدل او د هغو په معنا او مفهوم پوهېدل. | د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) |
| | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | د تدریس لارې |
| | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | د تدریس وسیلې |
| | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | د ارزونې لارې او وسیلې |
| ۴ دقیقې | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ۶ دقیقې | ښوونکی دې د یوې پوښتنې په کولو سره زده کوونکي لوست ته ځیر کړي.<br>– تاسو له یو ځای څخه بل ځای ته د کومې تخنیکي وسیلې او عرادې په وسیله ژر او په بیړه رسېدلای شي؟ | د انګیزې رامنځته کول |

| ۳۵ دقیقې | د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| | – زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونو سره سم متن په لوړ غږ لولي او سم تلفظ ته متوجه کیږي.<br>– زده کوونکي د ډله ییز فعالیت په ترڅ کې د محاورې یا د خبرو اترو د کولو په لارو چارو پوهېږي او د پوهې کچه یې په دغه اړه زیاتېږي.<br>– زده کوونکي د لوست نوې کلمې په ګوته کوي او په جملو کې یې کاروي وروسته یې بیا په کتابچو کې لیکي.<br>– دوه، دوه تنه په وار سره د اړوندې موضوع په اړه یو له بل سره خبرې اترې کوي. | – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د ورځنیو خبرو اترو او محاورې په اړه له زده کوونکو سره خبرې کوي په تېره بیا هوايي ډګر ته د تللو او په الوتکه کې د تګ لارې چارې په ځانګړې بڼه زده کوونکو ته ورښيي، دغه محاوره ځو ځلې د دوو، دوو زده کوونکو په واسطه ترسره کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته په لوست کې د نویو کلمو د پیدا کولو او په جملو کې د کارولو سپارښتنه کوي. |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده کوونکي را غواړي چې د یوې موضوع په اړه یو له بله سره خبرې اترې وکړي.<br>– ښوونکی په ځانګړې توګه د زمانې د کارولو یا د ګرامري برخې په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي، تر څو هغوی هم دغه ډول خبرې اترې په اسانۍ سره وکړای شي.<br>– ښوونکی په ډله ییزو خبرو اترو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستیو پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | – زده کوونکي د ښوونکی له لارښوونې سره سم د ټولګي په وړاندې په وار سره په خبرو اترو کې د بېلابېلو زمانو کارونه کوي او یو له بل سره محاوره کوي.<br>– زده کوونکي په ډله ییزو خبرو اترو کې فعاله ونډه اخلي او خپلې نیمګړتیاوې سموي.<br>– زده کوونکي پخپلواک ډول د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>– زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع پخپلو کتابچو کې یاداشت کوي او په کورونو کې یې سرته رسوي. |

**اضافي معلومات:**

دساینس او تخنیک د ګړندي پرمختګ له کبله د بشر لپاره اسانتیاوې رامنځته شوي دي. پخوا به د لیرد لپاره له اسونو او پلي لارو څخه ګټه اخیستل کېده، نن ورځ ګړندۍ الوتکې جوړې شوې چې پر پوځي دندو سربېره ځینې یې د وګړو د لیږدونې او تګ راتګ لپاره کارول کېږي او ځینې سترې الوتکې بیا د مالونو د وړلو او راوړلو لپاره هم اجاره کېږي او په مناسبه بیه تجارتي توکي له یو ځای څخه بل ځای ته او یوه هېواد څخه بل هېواد ته لیږدوي. د الوتکو په واسطه چې کوم هوایي خدمتونه تر سره کېږي دا ټول د هوایي ترافیکو د بهیر په نوم نومول شوي دي او څوک بیا ورته هوایي ترانسپورټ هم وایي. نن سبا زموږ په هېواد کې هوایي ډګرونه جوړ شوي چې الوتکې پکې پورته، کښته کېږي او زیات شمېر مسافر له یو ولایت څخه بل ولایت ته لیږدوي یا د هېواد څخه بهر زموږ هېوادوال نورو هېوادونو ته لیږدوي. دغه بهیر د ټکټ او ویزې په ترلاسه کولو سره پیلیږي، کله چې د کوم هېواد ویزه او ټکټ تر لاسه شي، بیا نو مسافر هوایي ډګر ته ورځي، هلته په خپل ټاکلي وخت الوتکه الوتنې ته چمتو ولاړه وي. کله چې ټکټونه کنټرول شي او د مسافرو مالونه او بکسونه د ګومارل شوو کسانو له خوا کنټرول او وپلټل شي بیا ځانګړي ټکټونه پر نوموړو بکسونو باندې نښلوي او یوه کاپي یې مسافر ته ورکوي، چې کله له الوتکې څخه کوز شي، بیا هغه ټکټ ګومارل شوي کس ته ښکاره کوي او خپل بکس او مال تر لاسه کوي د الوتکې په واسطه موږ ډېر ژر خپلو موخو ته رسیدای شو او د خلکو د لیږد رالیږد لپاره یې ډېرې اسانتیاوې رامنځته کړي دي.

د یوې ژبې دزده کړې له اساساتو څخه یوهم خبرې کول دي چې په خبروکولو سره ژبه زده کیږي. د ژبې زده کړ دوه بنسټونه لري چې یو یې اوریدل او بل یې خبرې کول دي. که د دویمې ژبې زده کوونکي هر څومره پخپلو منځونو کې په یوې موضوع خبرې اترې وکړي په هماغه کچه یې د خبرو کولو مهارت پیاوړی کیږي او هم یې د کلماتو په پانګه کې نوې کلمې زیاتیږي. په پورتنۍ محاوره یا خبرو اترو کې درې ګټې نغښتي دي، یو یې داده چې زده کوونکي د سفر په وخت کې د هوایي ډګر په لارو چارو پوهیدای شي او له بل پلوه د ډېرو نوو کلماتو په زده کولو سره د دوی د خبرو کولو مهارت پیاوړی کیږي. په خبرو اترو کې د زده کړې دوه مهارتونه اوریدل او خبرې کول سرته رسیږي، دریم مهارت یې لوستل او څلورم مهارت یې لیکل دي. ښوونکی کولای شي چې په لیکنې ډول هم په زده کوونکو باندې د محاورې تمرین ترسره کړي.

## لسم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | په قفس کې بندي بلبل | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | - د معاصر نومیالي شاعر صالح محمد هوتک په ژوند پوهیدل.<br>- په قفس کې د بندي بلبل د شعر په معنا پوهیدل.<br>- د پوهنې او ښوونځیو په خوړولو کې د صالح محمد په خدمتونو خبریدل.<br>- د لوستلو او خبرو کولو د مهارت پیاوړي کول.<br>- په متن کې له نوو کلمو سره بلدیدل.<br>- د ګرامري برخې زده کول. | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارڅارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | ښوونکی دې د لاندې پوښتنو په کولو سره زده کوونکي لوست ته ځیر کړي.<br>- تاسې په قفس کې (بندي بلبل) تر نامه لاندې کوم شعر لوستی دی؟<br>که مو لوستي وي شاعر یې څوک دی؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی متن په لوړ آواز ولولي. | - زده کوونکي متن ته غوږ نیسي. | |
| - ښوونکی په وار سره متن په زده کوونکو ولولي او د لوستلو په وخت کې دې د زده کوونکو د تلفظ نیمګړتیاوې سمې کړي. | - زده کوونکي دې په وار سره متن په لوړ غږ ولولي او د لوستلو په وخت کې دې سم تلفظ ته پاملرنه وکړي. | |
| - ښوونکی دې زده کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې نوې کلمې په نښه او معنا کړي، بیا دې په جملو کې وکار وي که ستونزه یې درلوده ښوونکي دې ورسره مرسته وکړي. | - زده کوونکي په متن کې نوې کلمې پیدا کوي، لومړی یې معنا کوي او بیا یې په جملو کې کاروي د ستونزې په وخت کې له ښوونکي څخه مرسته غواړي. | |
| - ښوونکی د شعر یوه، یوه برخه پر زده کوونکو معنا کوي. | - زده کوونکي د شعر یوه، یوه برخه لولي او بیا یې معنا کوي. | |
| - ښوونکی زده کوونکي په ډلو ویشي او هرې ډلې ته دنده ورکوي چې د شعر مفهوم په یوه پاڼه کې ولیکي او بیا دې د هرې ډلې استازی په ټولګي کې ولولي. | - زده کوونکي پخپلو ډلو کې د شعر په معنا خبرې کوي او دقیقه معنا یې په کاغذ کې لیکي، بیا یې په وار سره د هرې ډلې استازی په ټولګي کې اوروي. | |
| - ښوونکی زده کوونکي د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې | - زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي | |

| | |
|---|---|
| راغواړي، ځيني د ازادۍ په اړه خبرې کوي او ځيني بيــا د صالح محمدهوتک په هغو خدمتونو غږيږي چې د پوهنې په برخه کې يې کړي دي.<br>– ښوونکی د صالح محمدهوتک خدمتونو او دده د شعر د ځانګړتياوو په اړه معلومات وړاندې کوي.<br>– ښوونکی له زده کوونکو څخه د صالح محمــدهوتک د اثارو نومونه پوښتي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته دکتاب د وروســتۍ برخــې د فعالتونو د حل کولو سپارښتنه کوي. | مخ ته راځي او پر ټاکلو موضوعاتو خبرې کوي.<br><br>– زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نيســي او مهــم ټکي يې پخپلو کتابچو کې ليکي.<br>– زده کوونکي په وار سره د صالح محمد هوتک د اثارو نومونه اخلي. |

**اضافي معلومات:**

مرحوم مولوی صالح محمد د مرحوم فيض محمد زوی په خټه هوتک د پښتو ژبې پوخ نثر ليکونکی او خوږ ژبی شاعر په (۱۳۰۷هــ ق) کال د کندهار په ښار کې زيږيدلی او په (۱۳۳۹هــ ش) کال د کابل په ښار کې وفات شوی.

مولوی صاحب متدين عالم او صوفي مشربه سړی و، نرمې او پستې خبرې يې کولې. له اسلامي زهد او تقوی سره يې ډېره مينه درلودله، همدا راز په ټولنيزو چارو کې د ښو احساساتو خاوند و، په تېره بيا د پوهنې د خپرولو په لاره کې يې ښه زيار ايستلی و او ډېرې تجربې يې درلودلې. کوم وخت چې مولوي صاحب وفات شو، نو ښاغلي واسعي د پښتو ټولنې غړي (د کابل) په مجله کې دده د ژوند مفصل حالات او پيښې ليکلي دي چې دلته يې کټ مټ رانقلوو،

ښاغلی واسعي چې مستعار نوم يې (ويرژړلی) دی داسې ليکي:

د پښتو ټولنې افتخاري غړی

مولوي صالح محمد مرحوم

مرحوم مولوي صالح محمد په قوم هوتک و، پلار يې فيض محمد نوميده او د نيکه نوم يې حاجی محمد اکبر و، چې د کندهار په تاجرانو کې د نامه څښتن و.

دا چې نوموړی مرحوم ولې د خپلې کورنۍ او خپل پلار او نيکه د تجارت او سوداګرۍ په لار نشو روان، بلکې بله ښه يې موندلې او علمي تظاهر يې کاوه، ځکه دده مور يوې خورا سترې او تاريخي علمي کورنۍ ته منسوبه وه او دده د مور له خوا نيکونه او ماماخېل د ګران هېواد افغانستان له منلو او مشهورو علماوو څخه و. مور يې هم له علمي کورنۍ پورې اړه درلوده او له علمي اشخاصو سره ناسته ولاړه درلوده.

مولوي صالح محمد د پښتو يو پخوانی ليکونکی او د پښتو ټولنې افتخاري غړی و، دده د ژوند حالات تر کومه ځايه چې مناسب وي. وليکو:

نوموړی مرحوم په ۱۳۰۷قمري هجري کال د کندهار په ښار کې د خپلو ماماخيلو کره د بامېزو په کوڅه کې وزيږيد او له همدغې ورځې څخه يې نشو نما او روحي او جسمي تربيه دواړه په هغه محيط کې موندلې وه.

د ماشومتوب له عمره وروسته د زلميتوب په ابتدا کې کابل ته راغی او د حبيبيې ملوستې (اوسنۍ لېسې) په لومړيو متعلمانو کې شامل شو. نوموړي مرحوم وروسته د ابتدايي نصاب تر لوستلو د خپل فاميلي ايجاب په اثر د تعليم او تحصيل سلسلې ته دوام ورنکړای شو او په حبيبيې ملوسته کې د معلم په حيث مقرر شو، ځکه چې په هغه وخت کې هم په حبيبيې ملوسته کې پښتو ژبه د تدريسي نصاب په لړ کې مهمه برخه درلوده او په څو صنفونو کې يې لوست جاري و، نو نوموړي مرحوم علاوه د نورو مضامينو د پښتو لوست هم ورکاوه او په همدغه اساس د مملکت په لومړې عصري او عالي کالج کې د پښتو ژبې لومړی استاد او پوهاند، بايد يوازې همدې بلل شي.

نوموړی مرحوم ددغې وظيفې په ايجاب مجبور شو چې د هغو صنفونو لپاره چې پښتو لوستونه يې پکې درلودل لوستي مواد هم

تهیه کړي، نو ځکه یې د حبیبي ملوستې (د انجمن تالیف) په مشوره یو ابتدایي گرامر (د پښتو صرف و نحو لومړی کتاب) په نامه یې ترتیب کړ چې د هغه وخت په دولتي مطبعه کې دلیتوگراف په چاپ خپور شو، چې له همدغه کبله مرحوم د خپل هېواد تقریباً د (رنسانس) په دوره کې د پښتو لومړی مؤلف هم دی. نوموړي مرحوم په دغه کالج کې د ښوونکي وظیفه تقریباً ٦ کاله اجراء کړه، وروسته چې د کابل په ښار کې ابتدایي مکتبونه هم تأسیس شول، هغه مرحوم د ښار د ټولو ابتدایي مکاتبو د مدیر مشهور فاضل مرحوم مولوي عبدالرب د معاون په حیث د (نائب مدیر) په نامه مقرر شو.

نوموړي مرحوم له خپلې مورنۍ ژبې سره مینه درلوده او د همدغې مینې په اثر یې د زلمیتوب له ابتداء څخه په دې لار کې قلم خوځاوه، اجتماعي– اخلاقي او ځینې د اصطلاحي افکارو منظومې به یې د هغه وخت یوازینې جریدې ((سراج الاخبار)) کې خپرولې، د سراج الاخبار په پښتو نشریاتو کې ماته یوازې دده او د مرحوم غلام محی الدین خان افغاني آثار را په زړه کېږی چې کله کله به پکې لیدل کیده او د بل چا هغسې په بانه وو او که به وو، نو به بیخې لږ او نادروو، نو په دغه حساب د گران هیواد لومړۍ جریدې ته پښتو خپرونې یوازې ده او دده ملگري کوم چې موږ یې نوم واخیست ورکولې او د سابقې او قدامت حق یې په برخه دی.

نوموړي مرحوم د زلمیتوب په دوره کې د ځوانۍ جذبات او تاوده احساسات د پښتو قصایدو او غزلیاتو او کله د منثورو پرچوپه لیکنه کې ښکاره کول. کوم چې به د نشر وړو و هغه به په (( سراج الاخبار)) کې خپرېدل او چې د عمومي خپرونې به نه وو هغه به یې د خپلو ملگرو او دوستانو په مجلس کې تر لوستو وروسته له ځانه سره ساتل، ممکنه ده چې اوس دي د ده ډېرې منظومې دده له زامنو سره موجودې وي.

یوه رساله یې د اعلیحضرت امیرحبیب الله خان شهید په امر د (اطاعت او لوا الامر) په نامه چې په هغه وخت کې د مرحوم مولوی عبدالرب له خوا په فارسي لیکل شوې وه، مولوی صالح محمد د فاضل مؤلف په اشاره په پښتو ترجمه او وروسته یې پښتو هم طبع او خپره شوه.

لنډه دا چې موږ هغه مرحوم په سراجي عصر کې لومړی سړی وینو چې د پښتو لیکلو سره یې د منظومو قصایدو ترجمې او تالیف له لارې له پښتو سره مینه او علاقه درلوده او په دې خوا کې یې قلم خوځاوه.

وروسته تر هغه په اماني عصر کې نوموړي مرحوم په ۱۲۹۹ هـــ.ش کال له کابل څخه د کندهار د پوهنې مدیر مقررېږی او په احمدشاهي ښار کې د لومړي ښوونځي تأسیس او افتتاح دده په مدیریت کې وشوه، همدغسې په دغه مرکز کې د لومړي اخبار (طلوع افغان) چلول او مدیریت هم ورسپارل کیږي، خو وروسته د یو څو گنو تر راایستلو دې یوازې د معارف ادارې ته کیږي او د اخبار د چلولو چارې ښاغلی فاضل عبدالعزیز الکوزي اوسني (باباجان) ته وربه غاړه شوې. نوموړی مرحوم د کندهار د معارف د مدیریت په دوره کې د ده له حاله سره برابر خدمتونه وکړل او دوخت آمرانو او صلاحیت لرونکو مقاماتو به خوښې هم ځنې کوله. کله کله به دمډال او نغدي بخشش په ذریعه ویاړل کیده، د ده د ژوند دا دوره د سقاوي گډوډیو په راتگ سره پای مومي. دا د اړو دوړ (۹) میاشتې پرده هغسې تېرې شوې لکه په وطن کې چې پر نورو هغو کسانو تېریدلې چې فقط د خدایي وغیبي معاونت په انتظار کې وو او ځکه چې نور څه به یې له لاسه نه وو پوره نو فقط په خدای ژړیدل.

د نجات د عصر په محض شروع کیدلو نوموړي مرحوم ته هم هغه د معارف مدیریت وربه غاړه شو. په دغه دوره کې هم چې تقریباً ٦ کاله یې دوام وکړ، د خپل مخصوص کرکټر سره معارف لپاره یې په کندهار کې خدمتونه وکړل– او په عین حال کې یې له پښتو سره تر پخوا تماس ډېر شو. دا ځکه چې ښاغلي محمدگل مومند بابا د کندهار د ولایت په تنظیمه ریاست مقررو او هغه په کندهار کې پښتو او پښتونولۍ ته له هرې خوا پرمختیا او پراختیا ورکړه چې (د پښتو انجمن) تاسیس او د (طلوع افغان) پښتو کیدل ددې تحریک مهم ارکان بلل کیده.

ښاغلي مومند ادبي مجلسونه او د مشاعری جرگې درلودې. په هر پنځلس ورځو یا میاشت کې به دده په ناسته او شمولیت داسې مجالسو هرو مرو ترتیب موند او کوم اشعار او منظومې چې به د همدغه مجلس لپاره جوړې شوې وې وبه لوستل شوې. نوموړي مرحوم به په دغو مجالسو کې هرو مرو حاضر و. او منظومې به یې هم خوندورې وې بل وخت به هغه اثار د پښتو انجمن په مجله ((پښتو)) کې خپریدل. د معارف د مدیریت له وظیفی سره اړخ په اړخ نوموړي

مرحوم ادبي وظايف هم اجرا كول او قصائد او منظومې يې هروخت په دغسې مجالسو كې لوستل كيدې او اوريدونكو به قضاوتو نه پرې كول او خوند به يې ځينې اخيست.

د نومړي مرحوم د معارف د مديريت دوهمه دوره په كال ۱۳۱۴ كې پای ته رسيږي او د كندهار څخه مركز ته راځي. په مركز كې هغه ورځې دي چه فارسي انجمن ادبي او كندهار د پښتو انجمن چې هغه هم له كندهار څخه كابل ته رامنتقل او د معارف په وزارت پورې مربوط دی سره يوځای او متحد كيږي، پر دوو پښتو او فارسي برخو ويشل كيږي او نومړی مرحوم علاوه د پښتو د برخې پر آمريت د ( پښتو مبصر) په نامه پخپله پښتو برخه كې د يوه درې ورځينې اخبار ليكنه او چلونه د (زيرې) په نامه هم پر اوږه اخلي، خو دده دا وظيفه او مصروفيت لږ دوام كوي. د يوه كال تر پوره كيدلو دمخه د پښتو د مبصريت څخه د شاهي ارگ او دارالتحيرير شاهي د پښتو د كورس د ښوونكی په حيث مقرريږي او ددغې مستريح او بی ږغ ږوغې وظيفې سره يې خپله مينه څرگندوله. ده پدې وظيفه كې چې دده ذوق سره يې توافق درلوده ښه ډيره موده تيره كړه خو په آخر كې يې د ماموريت دوره بشپړه شوه او تقاعد يې وكړ. نومړي مرحوم تر تقاعد څوكاله وروسته د يوه ملي شخصيت په نامه د كندهار د مركز له خوا د ملي شورا په ۱۲ دوره كې د نماينده او وكيل په حيث وټاكل شو او د شورا د نمايندگانو له خوا د رئيس او معينانو د ټاكلو په غونډو كې د لومړي معين په حيث قبول شو، ددغې دورې د ښو خدمتونو او سپيڅلو آراو او نظرياتو له كبله چه د كندهار د مركز وگړو ته څرگنده شوه په ۱۳ دوره كې بله پلا بيا د كندهار ښار دوكيل په حيث منتخب او ملی شورا ته وليږل شو. كه څه هم دا دوره يې پوره او بشپړه نكړای شواې خو بيا يې هم د خپل ښه نيت په اثر د مملكت په پارلمان كې پارلماني وظايف د يوه صالح او معتمد نماينده په توگه داسې سرته ورسول چه دملت او حكومت دواړو له مرامه سره يې سرخوږ او له مصالحو سره يې توافق درلود. په آخر كې به دده د شعر پر څه رنگه والی او دده د تفكر پر طرز هم لږ شانته غږيږو.

دده د شعر يو ښكاره خصوصيت ساده گي او د الفاظو او كلماتو سوچه والی او سپيڅلتيا وه او د نظم بحر يې هم اكثر قصير دی يعني زياتره منظومې يې په قصير بحر كې ويلې دي، ده پخپلو اشعارو كې خپل جذبات او خپل احساسات څرگندول او يوازې دده د ځاني فكر ترجماني كوي– د بل چا له بلې خوا يې د الهام يا اقتباس په توگه څه نه دي اخيستي. له همدغه جهته دده مطالب ډير ساده مگر خورا په زړه پورې او خوندور وو، پر مروجه او حاضره لهجه چې لوړو ځوړ ټول يوشانته استفاده ځنې كولاې شی او هر چاته څه نا څه خوندور كوي برابر وو.

د نومړي مرحوم په خپاره شوو او طبع شويو آثارو كې غزليات نه دي ليدل شوي، بلكه دده زياتره نشر شوي آثار اخلاقي او اجتماعي يا اصلاحي رنگ لري او اشعار يې زياتره په همدغه دريو چوكاټو كې دي ،دده د كلام يو بازار او هرچاته په زړه پورې او مقبول خصوصيت دادی چې له هر ډول تكلف او تصنع څخه پاک او دومره په زړه پورې وي چې هر لوستونكی يې د ځان كلام او خپلې خبرې بولي.له هغو كلماتو او عباراتو څخه كار اخيستل شويدی چې چاته آشنا او داسې ښكاري لكه دده تر خولې چې راوتلي دي، خلاصه د تعقيد او د كلماتو له نامانوسيت څخه به هرومرو پاک وي.

د نومړي مرحوم آثار او اشعار، وار له واره په سراج الاخبار كې او تر هغه وروسته د كندهار په طلوع افغان كې ډېر خپاره شويدي.

نومړی مرحوم په ۱۳۳۹ كال د سنبلې د مياشتې په څلورمه د يوې ورځنۍ ناروغۍ په اثر په كابل كې وفات شو، جنازه يې كندهار ته د ښخېدلو لپاره راوړل شوه او خپلې پلرنۍ هديره كې دفن شو.

دا به ښه وي چې هغه منظوم او منثور ناچاپ آثار يې چې دده له خپلوانو يا نور چا سره وي د چاپ او لوستونكي ترې گټه پورته كړي.

۱– پښتو مثنوي (۳۰۰۰) بيته قلمي ده.۲– خودآموز پښتو چې په كندهار كې طبع او په پښتو او فارسي نشر شوی دی.
۳– د عزيزي تفسير ترجمه: په پښتو قلمي ده. ۴– لومړی كتاب د پښتو: ۲جلد چاپ شوی دی.
۵– پښتو ژبه: ۲ ټوكه چاپ شوی دی. ٦– دده د اشعارو مجموعه: چې ځينې يې په جرايدو كې خپاره شوي هم دي.
۷– پښتو پښويه: د پښتو صرف ا و نحو چې له اردو څخه ترجمه او طبع شوی دی. ۸– طاعت اولی الامر: مطبوع دی.

## یوولسم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرح | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | غزل | د لوست موضوع |
| | - د غزل په معنا او مفهوم پوهېدل.<br>- په دې پوهېدل چې په پښتو ادب کې غزل له کوم وخت څخه دود شوی دی؟<br>- د غوږ نیولو او لوستلو د مهارت پیاوړتیا.<br>- د لوست په ګرامري برخه پوهېدل.<br>- د معاصرو یا اوسني غزل او ویونکو سره یې د زده کوونکو اشنایي پیدا کول. | د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) |
| | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | د تدریس لارې |
| | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر او کتابچه او قلم. | د تدریس وسیلې |
| | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | د ارزونې لارې او وسیلې |
| ۴ دقیقې | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ٦ دقیقې | ښوونکی دې د لاندې پوښتنې په طرح کولو سره لوست ته زده کوونکي ځیر کړي او هغوی دې بحث کولو ته وهڅوي.<br>- سندرغاړي چې په رادیو او ټلویزیون کې سندرې وایي یوازې د سندرو په نامه یې یادوي او که غزلې هم ورته وایي.<br>- غزل څه ډول شعر دی؟ | د انګیزې رامنځته کول |

| ۳۵ دقیقې | د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| | - زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن په لوړ غږ لولي او سم تلفظ زده کوي.<br>- څو تنه زده کوونکي په وار سره د نورو په وړاندې د لوست یوه، یوه برخه لولي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي د معلوماتو په بهیر کې د غزل په جوړښت او په پښتو ادب کې د هغه د تاریخي بهیر په اړه معلومات ترلاسه کوي.<br>- زده کوونکي د متن نوې کلمې معنا کوي او په جملو کې یې کاروي.<br>- زده کوونکي اړوندو پوښتنو ته ځوابونه وایي. | - ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د غزل لوست په څو برخو ویشي، هره برخه یې په جلا جلا ډول په زده کوونکو تمرینوي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته د غزل په جوړښت، موضوع او تاریخي بهیر په اړه خبرې کوي.<br>- ښوونکی سپارښتنه کوي چې زده کوونکي نوې کلمې په جملو کې وکاروي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده |

| کوونکي را غواړي چې د غزل په اړه خبرې وکړي.<br>– ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستۍ برخـــې د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه لارښـــوونه کوي او د سرته رسولو په لارو چارو یې رڼا اچوي. | – زده کوونکي د ټولګي په وړاندې په وار سره یوه، یوه دقیقه د پښتو غزل او د هغه د ځانګړتیاوو په اړه خبرې کوي.<br>– زده کوونکي د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته پخپلـــواک ډول ځوابونه وايي.<br>– زد کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سرته رسوي. |
|---|---|

**اضافي معلومات:**

غزل: د نظم یو ډول د بیتونو شمېر یې له پنځو څخه تر پنځلسو پورې رسیږي. چې ټول یې پـــر یـــو وزن او قافیـــه وي، جوړښت یې د قصیدې په څېر دی، له یوې مطلع څخه پیروي کوي او وروستۍ بیت ته یې مقطع وایـــي چـــې معمـــولاً د شاعر تخلص پکې راځي.

د غزل په فورم کې په پیل کې د جانان، وصال او هجران خبرې منعکسې کېدې، خو د وخت په تېرېدلو سره یې محتوا هم بدلون موند او د ژوند بېلابېل موضوعات او ان ټولنیزې ناخوالې هم په غزل کې بیان شوې.

د اسلام د سپیڅلي دین په خپرېدلو سره په سیمه کې د عربي ژبې او ادب اغیز د سیمې په وګـــړو بانـــدې را څرګنـــدې شوې، چې په فارسي ادب یې ډېره اغیز وکړه، په همدغه ترتیب غزل له فارسي ادب څخه پښتو ادب ته لاره ومونده او لـــه ټول هغه تکلفات چې د فارسي په کلاسیک ادب کې یې درلودل، پښتو ادب ته یې هم لار پیدا کړه.

لنډه دا چې عروض او افکار د عربي او فارسي ادب له لارې پښتو ژبې ته راننوتل، کله چې د پښتو عروضي غزل جـــاج اخلو، نو په سر کې اکبر زمینداوري مخې ته راځي چې د (۷۸۰هـــ) په شاو خوا کې یې ژوند کاوه، چې غزل یې په فني لحاظ څه عروضي رنګ او بڼه لري، نو ځکه موږ د پښتو د فني غزل د تاریخ پیلامه هم ددې لومړني غزلبول شـــاعر لـــه غزل نه پیلوو، خو له دې څخه مو موخه دا نه ده چې پښتو غزل یوازې په دغه بڼه موږ ته پاتې دی، بلکې پښتو غـــزل پـــه دوو بڼو کې تر موږ را رسیدلی دي:

– فني او کلاسیک غزل: چې د عروضو، بحرونو او اوزانو په رڼا کې ویل شوی، چې زموږ د کلاسیکو شـــاعرانو ټـــول دیوانونه او کلیات زیاتره د فني او کلاسیک غزلونه نه ډک دي.

– ملي غزل چې د عربي، فارسي له عروضو نه یې ځان آزاد کړی دی او کله د نورو آریایي ژبو په څېر ملي وزن او رنګ لري چې په دغه ډول کې د ملي ولسي شاعرانو ملي غزلې شاملې دي.

غزل که فني او کلاسیک وي او که ملي او عامیانه وي یوه مطلع او مقطع لري، د محتوا له مخـــې غـــزل د ربـــاعي او څلوریزې سره ډېر توپیر لري په څلوریزه کې د پند او نصیحت د خبرو ونډه زیاته وي، په غزل کې بیا د عشق او مینـــې برخه زیاته وي. کله چې موږ اکبر زمینداوري د پښتو غزل لومړنی غزل ویونکی شاعر ګڼو، د پښتو غزل پیلامه د اتمـــې هجري پېړۍنه پیل شوې ده. همدارنګه د یو جوت واقعیت دی چې د اسلام د سپیڅلي دین اغیز په دویمه هجري پیـــړۍ کې په دې سیمو کې څرګند شوی و. په ۱۳۹ هـــ کې د امیر کروړ ویاړنه یا پښتو نظم هم د اسلامي فتوحاتو او د جهاد د پښتنې جذبې نه یې بې اغیزې نه ښکاري، نو دا هم څرنګه کېدای شي چې غزل به د عربي او فارسي ادب په واسطه یـــا نیغ په نېغه د پښتو شعر او ادب میدان ته پښه نه وي را غځولي. د ابو محمد هاشم (۲۲۳– ۲۹۷ هـــــ.. ق) د ســـالو ورمې نه دا څرګندېږي چې د عربي ژبې فصاحت، بلاغت او شاعرانه کمالات ارومرو پښتو ادب ته راننوتي وو.

محمد هاشم سرواني چې د عربي ادب لوی عالم و، د عربي فصاحت او بلاغت یې د سالو ورمې په کښلو کې په پام کې نیولي دي.

او د درهم په اړه د ابن خلاد عربي شعرونه یې پښتو کړي دي چې څو بیتونه یې دلته راوړو:

ژبه هم ښه وینا کاندي چې یې وینه　　　د خاوند په لاس کې زر او درهمونه

ژبورو له ورځي وینـــــــــــــــا یې اوري　　　د درهم خاوندان تل وي پـــه ویاړونه

په دريمه هجري پيړۍ کې د پښتونخوا په سيمو کې د عربي ژبې او ادب اغيز لا پياوړی شو، نو خامخا به د پښتو په نـــيم عروضي او ملي غزل کې ډېرو شاعرانو د ابو محمد هاشم سرواني په څېر خپله طبع ازمايلې وي.

په همدغه ترتيب سره په څلورمه هجري پيړۍ کې شيخ رضي او نصر لودي راځي، چې په خالص ملي وزن کـــې پـــاړکی لري او د اسلامي جذبې څرگندونه کوي. په دغه دوره کې د شيخ حميد لودي د واکمنۍ له برکته د پښتو ژبې بخت هـــم راويښ شو او له هرات څخه تر ملتان پورې خپره شوه، نو خامخا به په دغه دوره کې هم پښتو غزل ويل شوی وي.

په څلورمه هجري پيړۍ کې د پښتو صوفي ملي شاعر بيټ نيکه تېر شوی دی، د لويه خدايه – لويه خدايه– ستا په مينه په هر ځايه مناجات کې يې د لوی رب حمد بيان کړی دی.

په پنځمه هجري پيړۍ کې شيخ اسعد سوري مخې ته راځي چې د غور د واکمن د مړينې په سبب يې يوه مرثيه ويلې ده:

د فلک له چـــــــــــارو څه کړم کوکار زمولوي هر گل چې خاندي په بهار

هر غاټول چې پـــه بيديا غوړېده وکا ريژوي يې پاڼې کاندې تـــــــــار په تار

په همدغه توگه په شپږمه هجري پيړۍ کې شيخ تيمن دی، چې د بېلتون له لاسه نارې او سورې لري او د پښتو ملي غزل ښه بېلگه ده.

گهيځ رڼا د لمـــــر خپـــــــــــــره ســـوه زما پر کور د ويــــــــــــر نـــاره سوه

د بيلتون ورځ توره تيـــــــاره سوه رڼغ سو ناڅاپه چې بېلتون راغی

په همدغه ترتيب په اوومه هجري پيړۍ کې قطب الدين بختيار مشهور شاعر تېر شوی. ددې دورې په وروستيو کې شـــيخ متي او بابا هوتک هم مشهور شاعران تېر شوي دي. بابا هوتک د مغولو د يرغل په وړاندې حماسي سندرې ويلې دي.

په لنډه توگه ويلای شو چې د پورتنيو شاعرانو په شعرونو کې د پښتو غزل ځرک په مستقيمه توگه نه تر سترگو کېـــږي. خو دغو شاعرانو به خامخا د پښتو غزل په برخه کې خپله طبع ازمايلې وي. دغو شاعرانو له ملي لهجـــې او وزن نـــه دا څرگندېږي چې زياتې غزلې به يې په ملي لهجه ويلې وي.

تر دې وروسته پښتو غزل چې کومه ښه لري هغه زياتره عروضي او نيم عروضي دي، په فن پوهېدل، د مضمون پراختيـــا، د ژبې خوږوالی، د معيار لوړتيا او نور ټولنيز مسايل په پښتو غزل کې شامل شول او نن پښتو ادب په دغه فورم کې ډېـــر تکړه او پياوړي غزل ويونکي شاعران لري چې حساب پرې کېدای شي.

پاتې دې نه وي چې غزل په لرغونې دوره کې د اتمې پيړۍ په دويمه نمايي کې د اکبر زميندا‌وري له خوا پيل شـــو چـــې مضـــمون يې عشقي و. د کلاسيکې دورې په لومړۍ مرحله کې د روښانيانو د سلسلې نامتو شاعر ميرزا خان انصـــاري غـــزل تـــه پراختيـــا ورکړه او خپل غزل يې ديني او مذهبي مسايلو ته وقف کړ. را وروسته خوشـــحال خـــان او دده اولادونـــو، عبـــدالرحمان بابـــا، عبدالحميد بابا او کاظم خان شيدا غزل لاپسې پراخه کړه، خوشحال خان خټک ملي او قومي مسايل هم داخل کړل.

رحمان بابا په غزل کې د حقيقي عشق بيان وکړ، حميد بابا او کاظم خان شيدا غزل د ښکلا لوړو پوړيو تـــه ورســـول. د هندي ادبي مکتب ښکلاييز توکي يې پښتو غزل ته را دننه کړل.

په معاصره يا اوسنۍ دوره کې غزل د عشق ترڅنگه د ورځې د پښتو غزل پلار امير حمزه شينواري پښتني مفاهيم په غزل کې را ننويستل او غزل ته يې ځانگړی پښتني رنگ ورکړ.

ستاپه اننگو کې د حمزه د وينې سره دي

ته شوې د پښتو غزله ځوان زه دې بابا کړمه


**اخځليکونه:**

ــ پروفيسر افضل رضا، د پښتو غزل، پښتو اکاډمي، پېښور، ۱۹۷۸ کـــال.

ــ سيد محی الدين هاشمي، ادب پوهنه، د اريک گرځنده کتابتون خپرونه، ۱۳۸۱ کـــال، پېښور.

## دولسم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د پښتو ادبي تذکرې | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | – تذکره پېژندل.<br>– د ادبي تذکرې په معنا او مفهوم پوهېدل.<br>– د پښتو ژبې له ادبي تذکرو سره اشنایي پیدا کول.<br>– د ادبي تذکرې او ادب تاریخ په توپیرونو پوهیدل.<br>– د لوستلو او غوږ نیولو مهارت پیاوړي کول.<br>– د پښتو ژبې له یو شمېر لیکوالو او یو شمېر مشهورو آثارو سره اشنایي پیدا کول.<br>– په متن کې د نویو کلمو سره اشنا کېدل. | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | ښوونکی به د لاندې پوښتنو په طرح کولو سره لوست ته لاره پرانیزي او زده کوونکي به بحث ته وهڅوي.<br>– تذکره څه ته وایي؟<br>– ایا د تابعیت او هویت تذکره له ادبي تذکرې سره توپیر لري؟ | ٦ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|
| – ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی له زده کوونکو سره د ادبي تذکرو په اړه خبرې کوي، له څو تنو زده کوونکو څخه د مشهورو تذکرو نومونه پوښتي او ښوونکی له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې ددغو مشهورو تذکرو د لیکوالانو نومونه | – زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي په لوړ غږ سره د لوست متن لولي او سم تلفظ زده کوي.<br>– زده کوونکي د ادبي تذکرو په ځانګړتیاوو ځانونه پوهوي.<br>زده کوونکي د ادبي تذکرې او د هویت تذکرې په توپیر ځان پوهوي او د مشهورو تذکرو نومونه اخلي او د هغوی |

| د تختې پرمخ وليکي. | ليکوال په ګوته کوي. |
| --- | --- |
| – ښوونکی زده کوونکو ته د نويو کلمو د معنا کولو او په جملو کې د کارولو سپارښتنه کوي. | – زده کوونکي د متن نوې کلمې معنا کوي او هغه پخپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروي. |
| – ښوونکی د وينا لپاره د ټولګي په وړاندې زده کوونکي را غواړي چې د ادبي تذکرې او ادب تاريخ په توپيرونو خبرې وکړي. | – زده کوونکي په وار سره د ادبي تذکرې او ادب تاريخ توپيرونه بيانوي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستيو پوښتنو د ځوابونو په اړه لارښوونه کوي. | – زده کوونکي پخپلواک ډول د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی د لوست لنډيز بيانوي او د زده کوونکو پوښتنو ته ځوابونه وايي. | – زده کوونکي د لوست لنډيز ته غوږ نيسي. |
| – ښوونکی د څو پوښتنو په کولو سره د لوست ارزونه کوي. | – زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | – زده کوونکي کورنۍ دنده يادداشت کوي او په کورونو کې يې بشپړوي. |

**اضافي معلومات:**

**د ادبي تاريخ او ادبي تذکرې توپيرونه:**

**تذکره يوه عربي کلمه ده چې په ځانګړې بڼه ډېرې معناوې لري، په ادبي او فرهنګي اصطلاح کې ادبي تذکره هغه اثر ته ويل کېږي چې د شاعرانو احوال يا د ژوند پېښې او آثار پکې معرفي او راپېژندل شوي وي او ورسره د شاعر د کلام بېلګې هم خوندي وي.**

**د تذکره ليکنې عمومي اصول عبارت دي له:**

**– د شاعر يا ليکوال بشپړ احوال او ژوند پېښې.**

**– د شاعر او ليکوال آثار او ايجادات.**

**– د شاعر او ليکوال د آثارو شکلي او موضوعي ځانګړتياوو څرګندونه.**

**– د شاعرانو او ليکوالو د احوال او آثارو د معرفي ترڅنګ د هغوي د اشعارو او نثري ليکنو بېلګې راوړل.**

**ادبي تذکره او ادبي تاريخ د تاليف دوه بېلابېل ډولونه دي چې يو له بله سره اړيکي لري. په ځانګړې توګه ادبي تاريخ په زياتو مواردو کې په ادبي تذکره تکيه کوي، مګر ادبي تاريخ ادبي تذکره نه ده او ادبي تذکره هم له اوسنيو معيارونو سره سم ادبي تاريخ نه دی. کېدای شي په يوې ادبي تذکره کې د يوې ژبې د بېلابېلو دورو او بېلابېلو جغرافيايي سيمو او فرهنګي حوزو کې اوسېدلو ناظمانو، شاعرانو، ليکوالو احوال او آثار مطالعه شي او دا معرفي يې کېدای شي په الفبايي سيستم يا د سيمو په لحاظ او يا هم د تاريخي وړاندې وروسته والي له مخې په کرونو لوژيک سيستم ترتيب او تنظيم شوې وي.**

**حال دا چې په ادبي تاريخ کې دا لار(مېتود) نه تعقيبېږي، بلکې په ادبي تاريخ کې د هرې دورې آثار، ليکوالان او شاعران پخپله دوره کې د ادبي پېښو او جرياناتو د انکشاف پر اساس څېړل کېږي، بر سېره پردې د ادبي تاريخ په اړه دا ټکي هم بايد په پام کې ونيسو، چې په ادبي تاريخ کې د يوې ژبې د ټول قلمرو آثار نشي مطالعه کېدای، ځکه، چې په بېلابېلو جغرافيايي سيمو کې تر مختلفو سياسي، اقتصادي او ټولنيزو سيستمونو او نظامونو لاندې واقع دي. هلته د ادبياتو د ايجاد**

او ودې شرایط هم توپیر لري او موږ نشو کولای چې د یوې ژبې ټول آثار، چې په بیلابیلو هېوادونو کې یې تر سیاسي، ټولنیزو شرایطو لاندې وده موندلې وي. په یو ادبي تاریخ کې راوړو بلکې په ادبي تذکره کې د پېښور او یا بلوچستان د شاو خوا سیمو پښتانه لیکوالان او شاعران کولی شو چې معرفي کړو، خو د ادبیاتو په تاریخ کې دا کار نشو کولاې.

د ادبي تذکرې او ادبي تاریخ بل ستر توپیر دا دی، چې کیدای شي ادبي تذکره کې د ادبي او هنري آثارو د لیکوالو او شاعرانو د پېژندګلوۍ تر څنګ ځینې ناظمان هم معرفي شي. مګر په ادبي تاریخ کې د ناظمانو او هر ډول لیکوالو آثار د مطالعې ځای نه لري، بلکې پر هغو آثارو، ادیبانو، لیکوالو او د دوي د ژوند پر پېښو تحلیلي بحثونه کېږي چې لوړ هنري او ادبي ارزښت ولري.

دلته د څو ادبي تذکرو او ادبي تاریخونو نمونه اخلو:

ادبي تذکرې:

| تذکره | لیکوال |
|---|---|
| پټه خزانه | محمد هوتک |
| – پښتو اوسني لیکوال ((درې ټوکه)) | عبدالرؤف بینوا |
| – پښتانه شعرا (پنځه ټوکه) | بیلابیل لیکوال. |
| – دا لیکوال او دا څېړې | ګل افضل ټکور |
| – د خیبر ادب | مراد شینواری |
| – ورکه خزانه | همیش خلیل |
| – د هشنغر ادب | اشرف غمګین |

– ادبي تاریخونه:

– د پښتو ادبیاتو تاریخ، دوه ټوکه– پوهاند عبدالحی حبیبي.

– پښتو ادب تاریخ – پوهاند رښتین

– تاریخ ادبیات افغانستان، حیدر ژوبل

– د پښتو ادبیاتو لرغونې او منځنۍ دوره، سرمحقق زلمی هېوادمل

– تاریخ ادبیات افغانستان، علي احمد کهزاد، غبار او نور.

– روهي ادب، محمد نواز طاهر

– د پښتو ادبیاتو تاریخ معاصره دوره، محمد صدیق روهي.

ــ د پښتو ادبیاتو لرغونې، منځنۍ او اوسنۍ دوره، پوهاند ډاکټر زیورالدین زیور.

په همدغه توګه یو شمېر نور ادبي تاریخونه او ادبي تذکرې د پښتنو لیکوالو له خوا لیکل شوې چاپ او خپرې شوې دي.

**اخځلیکونه:**


ــ سید محی الدین هاشمي، ادب پوهنه، د اریک د کتابتونو ګرځنده اداره، ۱۳۸۱ کـال، پېښور.

ــ سرمحقق زلمی هېوادمل، اولسي سندرې، لومړی ټوک، د افغانستان د علومو اکاډمي، ۱۳٦۱ کال.

# دیارلسم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | متلونه او محاورې | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | – د متل او محاورې په معنا او مفهوم پوهېدل.<br>– د شفاهي ادبیاتو د یوې اړینې برخې په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>– د متلونو د کارولو په اړه پراخه معلومات ترلاسه کول.<br>– د متلونو په ډولونو پوهېدل.<br>– د لوستلو او غوږ نیولو د مهارتونو پیاوړتیا.<br>– د متل او محاورې په توپیرونو پوهیدل.<br>– په وینا او لیکنه کې د محاوې او متل په استعمال پوهیدل. | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارڅارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | ښوونکي دې د لاندې پوښتنو په کولو سره لوست ته د زده کوونکو پاملرنه راوګرځوي او هغوی دې بحث کولو ته وهڅوي.<br>۱– د خپلې ادعا د ثبوت لپاره چې څوک په خبرو کې یوه لنډه پخه جمله وکاروي، هغه د څه په نوم یادېږي؟<br>۲– (پوره ورک دې کړه دوه کوره) او (په جامو کې نه ځایدل دا څه توپیر لري؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د متلونو او محاورو لوست په دوو برخو ویشي، له زده کوونکو سره د متلونو او محاورو په اړه خبرې کوي.<br>– ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د متلونو او محاورو توپیرونه بیان کړي. | – زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي په لوړ غږ متن لولي او سم تلفظ زده کوي.<br>– زده کوونکي د متلونو او محاورو په توپیر ځان پوهوي.<br>– څو تنه زده کوونکي پخپله خوښه د ټولګي په وړاندې د متلونو او محاورو د توپیر په اړه خبرې کوي. | |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چې د متن نوې کلمې معنا او په جملو کې وکاروي. | – زده کوونکي د متن نوې کلمې معنا کوي او بیا یې په جملو کې کاروي او د ټولګي په وړاندې یې په وار سره لولي. |
| – ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي. | – زده کوونکي په وار سره متل او محاوره وايي او د کارونې ځای او مفهوم یې څرګنده وي. |
| – ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې یوه محاوره او یو متن له ځانه ووايي او د استعمال ځای یې څرګند کړي. | – زده کوونکي پخپلواک ډول د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځواب وايي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستیو پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. | – زده کوونکي کورنۍ دنده پخپلو کتابچو کې یاداشت کوي او په کورونو کې یې بشپړوي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | |

**اضافي معلومات:**

د هر ولس په شفاهي ادب کې متل(ضرب المثل) مهم ځای لري. د بدایو ژبو یو ځانګړنه دا ده چې په متلونو کې هم بډایه وي. متل د خبرو یوه بیخي لنډه جمله ده چې د معنا، مفهوم او ځای په لحاظ عامه وي. د متل بلاغت او فصاحت په دې کې دی چې د فورم له مخې لنډ او مؤجز او د معنا په لحاظ مستعار او کنایه، د پوهېدو له مخې ساده او عام فهم او د افادې له مخې سم لګېږي.

یو لیکوال د متل په اړه وايي(په لفظي ساده ګۍ کې یې تر ټولو لویه هوښیاري او حکمت ځای شوی دی، متل او سندره تل مؤجز وي، خو د بشپړ کتاب هومره تفکر او احساس پکې وي. دغه لیکوال نورو لیکوالانو ته مشوره ورکوي چې لیکوالي له متل نه زده کړئ چې الفاظ پکې داسې کېنبل شوي دي لکه په موټي کې ګوتې، متل چې پښتانه ورته د هوښیارانو خبره هم وايي، خبره خوندوره کوي او د هغه مفهوم ته پیاوړتیا وربښي، متل اصلاً د یو هوښیار او حکیم عاقلانه (مقوله) وي چې په قصدي یا اتفاقي ډول یې له خولې وتلې وي، خو بیا د لفظي ښکلا، مناسب او معنوي حکیمانه افادې او ارزښت په برکت د ولس په ژبه جاري او خوندي ساتل شوي وي. د متل لومړی ویونکی د ولس له نظره لویدلی وي، خو وینا یې د شفاهي ادب یوه ارزښتناکه برخه وګرځي.

متل د ولسي نړۍ لید، تفکراو ذهنیت بېل بېل اړخونه ترسیموي، تاریخي وي ، لکه (که ته نازو شي خو میرخان به څوک وزیږوي)، جغرافیوي وي، (پېریانو ته غزني څه شی دی).

اخلاقي وي – (چې بد ګرځي بد به پرځي).

مذهبي وي– (چې اوبه وي تیمم ته حاجت نشته).

اقتصادي وي– (د خپلې برستنې سره پښې غځول په کار دي)، او په همدغه ډول په نورو برخو کې زیات پښتو متلونه شته. د متل ستره ځانګړنه دا ده چې تل کنایي معنا افاده کوي، که خپل اصله او حقیقي معنا افاده کړي هغه بیا متل نه دی. مثلا که: غر لوړ دی پر سر یې لاره ده.

– د غله په ږیره خلی وي.

– په یوه ګل نه پسرلی کېږي، دلته یو متل هم پخپله لومړۍ او اصلي معنا نه دی او نه د (لوړ غر) په سر لاره د غل په ږیره خلی، د ګل او پسرلي ترمنځ ارتباط ملحوظ دي چې د متل حقیقي معنا ده؛ بلکې دلته هر متل ځانګړی کنایي مفهوم لري چې هم اورېدونکي پرې پوهېږي او هم د ویونکي مطلب وي، او هغه د متل کینایي معنا ده او که کنایي معنا افاده نه

کړي هغه متل نشو بللی.

متلونه په ژبو کې د پيدايښت څو لارې لري چې دغه شپږ يې نسبتا عامې دي.

- د طبيعي او ټولنيزو پېښو له درکه هغو ته د ارزښت ورکولو او په مستعار ډول په ځانګړو پېښو کــې د اســتعمال او تکرار له لارې.
- د تاريخي پېښو د درک او انعکاس له لارې
- يوه ځانګړې برخه د اشعارو او سندرو له لارې
- بيخي محدوده برخه د کتابونو له لارې
- د مذهبي احکامو له لارې
- له نورو ژبو څخه د ژباړې او اخيستنې له لارې

متلونه عموما په ټولنو کې په معياری ژبو خپرېږي، هغه متلونه چې په معياري ژبه وي د ټولنې په هر ګوټ کــې اورېــدل کېږي، هغه چې د يوې لهجې تابع وي، د متل پر ځای بيا د اصطلاح او محاورې بڼه غوره کوي.

د متل يوه ځانګړنه داده چې بايد عام او دود شوي وي، د ولس پراخې پرګنې يې په مفهوم او د ځای او مورد په کــارولو وپوهېږي، خو اصطلاح او محاوره بيا دومره زيات عموميت نه لري، په سيمه کې دود لري او ان د ځينــو نــورو ســيمو وګړي يې په مفهوم او د کارولو په ځای او مورد نه پوهېږي.

اصطلاح او محاوره هم خوندوره جمله وي او کنايي معنا ور څخه اخيستل کېږي، که چېرته په اصلي معنا وکارول شــي خپل مفهوم له لاسه ورکوي. لکه غاړه غړول، ملا ماتېدل، لاس ورکول، پښه نيول، که په اصلي او لومړۍ معنا وکــارول شي دغه اصطلاحات د انسان د غړيو د حرکاتو ځرګندونه کوي. خو په کنايي معنا بيا بيل بيل مفاهيم افاده کوي لکه:

- غاړه غړول – سرکشي او اطاعت نه کول.
- ملا ماتېدل – په کار کې وروسته پاتې کېدل او ناکامه کېدل.
- لاس ورکول – مرسته کول.

پښه نيول – تګ راتګ نه کول.

**اخځليکونه:**


_ دوست، محمد دوست شينواري، د ولسي ادب لارې، د دانش خپرندويه مؤسسه، ۱۳۸۵ کال، پېښور.

_ محمد ګل نوری، پښتو اصطلاحات او محاوري، د افغانستان د علومو اکاډمی، پښتو ټولنې خپرونــه، کابــل، دولتــي مطبعه.

## خوارلسم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | حليمه خټکه | | |
| د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې) | – له پښتو ادب سره آشنايي پيدا کول.<br>– د پښتو ژبې د کلاسيکو ښځينه شاعرانو په اړه معلومات پيدا کول.<br>– د لوستلو او غوږ نيولو د مهارت پياوړي کول.<br>– د حليمې خټکې د ژوند او شعر سره د زده کوونکو آشنايي.<br>– په لوست کې د گرامري برخې په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>– د نويو کلمو سره اشنايي او په جملو کې يې د استعمال وړتيا پيدا کول. | | |
| د تدريس لارې | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، گروپي فعاليتونه او فردي فعاليت | | |
| د تدريس وسيلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه او قلم. | | |
| د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو او گروپي کارڅارل او پايلې يې په کتابچه کې ياداشت کول. | | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | لومړنی فعاليت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او د کورني کار کتنه | | ۴ دقيقې |
| | د انگيزې رامنځته کول:<br>– د انگيزې د راپارولو لپاره په تخته باندې د حليمه خټک يو بيت ليکل.<br>د آشنايي په فکر خوښه هسې شان شوم<br>نه پوهېږم چې ممتاز که نورجهـــان شوم<br>ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په شعر بحث وکړي او شاعرېې پيدا کړي. | | ۶ دقيقې |
| د ښوونکي فعاليتونه | | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
| – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکــو ســره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د حليمې خټکې د ژوند او شاعرۍ په برخه کې زده کوونکو ته لنډ معلومات ورکوي. او همدارنگه د پښتو ادبياتو د پرمختيا په برخه کې د ښځينه شاعرانو او ليکوالو د هڅو په اړه هم خبرې کوي. | | – زده کوونکي متن ته غوږ نيسي.<br>– زده کوونکي په لوړ غږ سره لوست لولي او سم تلفــظ ته ځير کيږي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي د معلوماتو پــه بهيــر کــې د حليمې خټکې د ژوند او شاعرۍ په اړه زيـــات پوهـــاوی ترلاسه کوي. | |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی زده کوونکو ته د نویو کلمو د معنا کولو او په جملو کې د کارولو سپارښتنه کوي. | – زده کوونکي د متن نوي کلمې معنا کوي او په مناسبو جملو کې يې کاروي. |
| – ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده کوونکي سره مرسته کوي. | – زده کوونکي په وار سره د حلیمې د ژوند او شعر په اړه خبرې کوي. |
| – ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده کوونکي را غواړي چې د حلیمې په اړه خبرې وکړي. | – زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي. |
| – ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده کوونکو سره مرسته کوي. | – زده کوونکي د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته پخپلواک ډول ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستۍ برخې دپوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. | – زده کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سرته رسوي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري چې په کورونو کې پرې کار وکړي. | |

**اضافي معلومات:**

د پښتو ژبې پیاوړی شاعر، لیکوال، ادیب، فیلسوف او د جګړې د ډګر اتل خوشحال خان خټک پښتو ژبې او ادب ته داسې څه په میراث پرېښيي دي چې تل به وربانديې په ښه نوم يادېږي. نه يوازې خوشحال خان خټک د پښتو ژبې او ادب لپاره ګټور کار تر سره کړی، بلکې دده فرهنګپالې کورنۍ هم د پښتو ادب زېرمه خورا بډايه کړې ده.

دلته د خوشحال خټک د لور حلیمه خټک په اړه خبري کوو:

حلیمه خټک چې په پټه خزانه کې د حلیمه حافظه په نوم ياده شوېده، د خوشحال خان خټک لور وه، چې د عبدالقادر خان خټک سکه خوروه، د پټې خزانې د لیکوال په وینا چې وايي(زما پلار هسې روايت کا: چې زه بنو ته ولاړم ، په هغه وخت دا پښتنه ژوندۍ وه او د خپل پلار په ژوند يې مروجه علوم ولوستل. بیا د شیخ سعدي لاهوري رحمة الله علیه مرېده شوه او د خپل ورور عبدالقادر خان په لاس يې بیعت وکړ، چې هغه هم د شیخ دوران خلیفه و.

روايت کا چې حلیمه بی بی فاضله او عارفه ښځه ده، او په سرا پرده د عصمت ناسته ده، میړه يې نه دی کړی او د خالق عبادت کا او د خپل ورورعبدالقادر خان په کور کې نورو ښځو ته لوست کا او قرآن عظیم يې هم په ياد دی. زما پلار وويل، چې حلیمه بي بي په پښتو ښه اشعار هم وايي اوموزونان د پښتو يې اشعارخوښوي، د تصوف او طريقت کتابونه يې ټول لوستلي دي او هسې وايي: چې مشکلات د مثنوي شریف او مکتوبات د حضرت امام رباني قدس سره حل کوي. د حلیمې په اشعارو کې مجازي عشق نه ښکاري، بلکې ټول شعرونه يې د حقیقت پر لار دي او د محبوب حقیقي صفت کا. دغه يوه بدله يې زما پلار ماته وويله.

د اشنايي په فکر خوښه هسې شان شوم<br>
نه پوهېږم چې ممتاز که نور جهان شوم<br>
چې يې کړمه ستا په مینه سر فرازه<br>
ثنا خوانه په څو رنګه د رحمان شوم<br>
چې مجاز مې د اياز ولاړ له زړه نه<br>
سر بلنده تر محمود غوندې سلطان شوم<br>
وهر چاو ته چې ګورم واړه دی دی<br>
د جمال په ننداره يې شادمان شوم

غیرفکر مې له زړه نه رابهر شو
پرخلیل وپر عدو باندې یکسان شوم
حلیمې د غماز مکرزیات له حد شو
چې دې بېل له یاره نه کا، په گمان شوم

د حلیمې خټکې په شان نورې پښتنې میرمنې هم د پښتو ادب د اسمان د ځلاندو ستورو په شان ځلیدلي دي چې د ځینو یادونه یې دلته راوړو:

میرمن رابعه– د میرمن رابعې یادونه په پټه خزانه کې شوې ده، مگر د پټې خزانې لیکوال هم ددې میرمنې پــه اړه لنــډه یادونه کوي (حال ددې شاعرې ماته نه دی معلوم سوی، خو لږ چې ښکاره ده هغه هسې ده، چې دا شاعره د کندهار وه، او په دوران د محمد بابر پادشاه یې ژوند کاوه)

هسې وایي: چې اشعار یې ډیر وو، دیوان یې درلود. دغه یوه رباعي ماته صدیق او رفیق محمد طاهر جمریاني وویله، چــې زه یې دلته په پټه خزانه کې را نقل کوم:

آدم یې مځکې وته راستون کا — په اور د غم یې، سوی لړمون کا
دوزخ یې روغ کا، پرمخ دمځکې — نوم یې د هغه، دلته بیلتون کا

میرمن زرغونه: د پټې خزانې لیکوال دا میرمن داسې معرفي کوي:

( زرغونه د ملادین محمد کاکړ لور وه، په پنجوایي کې اوسیده او له پلاره یې تحصیل د علومو وکا او د فصاحت احکام یې زده کړل او د فصحاوو اشعار یې ولوستل، زرغونه په حباله د سعدالله خان نورزي وه چې توریالي زامن یې درلودل او ټول د علم او هنر خاوندان و، هغې د شیخ مصلح الدین سعدي د بوستان کتاب ټول په پښتو شعر نظم کا او نوم یې و ((بوستان د پښتو)) دا کتاب یې په (۹۰۳هــ) کې پای ته ورساوه.

زما پلار هسې وویل: چې په سنه (۱۱۰۲) هجري ما د زرغونې په خط (بوستان د پښتو) ولید چې خپل اشعار یې پخپل ښه خط هسې کښلي و، چې ملغلرې یې خط ته عاجزی کا او دغه حکایت له هغه کتابه زما پلار رحمت الله علیه په یادو، چې زه یې په خزانه کې کاږم:

| | |
|---|---|
| اوریدلې مې قصه ده | چې له شاتو هم خوږه ده |
| د اختر په ورځ سهار | بایزید چې و، رویدار |
| له حمامه راوتلی | په کوڅه کې تیریدلی |
| ایرې خاوې چا له بامه | راچپه کړ یې ناپامه |
| مخ او سر یې سو ککړ | په ایرو په خاورو خړ |
| بایزید په شکر کښنو سو | د خپل مخ په پاکیدو سو |
| چې زه وړیم د بل اور | چې په اور کې سم نسکور |
| له ایرو به څه بد وړمه | یا به لږ شکوه کومه |

اخځلیکونه:


- دوست محمد دوست شینواری، د ولسي ادب لارې، د دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۵ل کا ل، پېښور.
- پروفیسر، افضل رضا، د پښتو غزل، پښتو اکاډمي، پېښور، ۱۹۷۸ کال.
- محمد هوتک پټه خزانه،


پښتنې میرمنې عبدالروف بېنوا

## پنځلسم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | بهرني پښتو پوهان | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | – د بهرنیو پښتو پوهانو له ژوند او آثارو سره بلدتیا موندل.<br>– د مشرق یا ختیځ پوه له مفهوم سره بلدتیا موندل.<br>– د افغانستان په اړه چې بهرنیو څېړونکو او ختیځ پوهانو کوم کتابونه لیکلي، د هغو په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>– د غوږ نیولو او لوستلو د مهارت پیاوړتیا.<br>– په متن کې نوې کلمې موندل او د هغو معنا کول. | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارڅارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | ښوونکی دې د یوې پوښتنې په کولو سره زده کوونکي د لوست لورته متوجه کړي.<br>– تاسو د افغانستان له لیکوالو او څېړنکو پرته نور کوم څوک پېژنئ، چې د پښتو ژبې او ادب په اړه یې څېړنې کړې او آثار یې لیکلي وي؟ | ۶ دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د بهرنیو پښتو پوهانو په اړه عمومي معلومات وړاندې کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چې په متن کې نوي کلمات پیدا او په جملو کې وکاروي.<br>– ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده کوونکي را غواړي چې کومو پښتو پوهانو د پښتو ژبې په اړه کارونه | – زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي په په لوړ غږ متن لولي او سم تلفظ ته پاملرنه کوي.<br>– زده کوونکي د بهرنیو پوهانو د آثارو او هېوادونو په اړه چې هغوی پکې زېږېدلی دي زیات معلومات ترلاسه کوي.<br>– زده کوونکي د لوست نوې کلمې پیدا کوي او په جملو کې تر کارولو وروسته پخپلو کتابچو کې یاداښت کوي.<br>– زده کوونکي د وار له مخې د ټولګي په وړاندې خبرې کوي او د پښتو پوهانو د علمي کارونو یادونه کوي. | |

| | |
|---|---|
| کړي دي. | |
| – ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده کوونکــو ســره مرسته کوي. | – زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروســتیو پوښــتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. | – زده کوونکي پخپلواک ډول د متن د وروســتۍ برخــې پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري چــې پــه کورونو کې په کار وکړي. | – زده کوونکی کورنۍ دنده لیکي او په کورونو کې سرته رسوي. |

**اضافي معلومات:**

پښتو ژبه د افغانستان ملي او دولتي ژبه ده، چې نن ورځ پراخ نړیوال شهرت لري، ددغې ژبې بډایه ادبي زېرمه او بــډای فولکلوردډې لامل شوی چې نه یوازې په هېواد کې دننه لیکوال او څېړونکي د هغې په اړه څېړنې او ګرویږنــې وکــړي، بلکې ډېرو بهرنیو ختیځ پوهانو هم ددغې ژبې د شعر، ادب او تاریخ په اړه څېړنې کړي چې د ځینو مشــهورو پوهــانو او ختیځ پېژندونکو په برخه کې دلته څه معلومات وړاندې کوو:

– الفنستن: مشهور تاریخ لیکونکی دی، هغه پخپلو لیکنو کې یو ځای داسې لیکي: ما د پښتو ۲۱۸ کلمې تــر څېړنــې لاندې ونیولې، تر زیات تحلیل او غور وروسته دا راته څرګنده شوه چې ددغې ژبې یوه کلمه هم د ســامي کلمــو ســره اړیکه نه لري. خو په سلو کې پنځه یې د کردي ژبې سره اړیکې لري. کردي ژبه پخپله هندو آریــن ژبــه ده. ددې نــه څرګندېږي چې پښتو ژبه هم یوه هندو آرین ژبه ده".

– هنری والټربیلېو: والټر بېلېو هم یو ختیځ پوه دی، ده هم د پښتو ژبې په باب د ګرامر یو کتاب لیکلی دی.

نوموړي په دغه کتاب کې د پښتو ژبې په اصالت خبرې کړې دي او داسې لیکي: (زه تر زیاتې پلټنې او څېړنې وروســته دغې پایلې ته ورسېدم چې پښتو د سانسګریټ خور ده)

– ډاکټر ټرومپ: ډاکټر ټرومپ جرمني پښتو پوه دی. ده په ۱۸۷۲ کال یو غوره ګرامر لیکلی دی چې په ۱۸۷۳ کــال په لندن کې خپور شوی دی.

– کوکس: دا پلټونکی انګریز دی. ده د پښتو ژبې ګرامر لیکلی دی چې په (۱۸۱۱م) کال په لندن کې خپور شوی دی.

– ګیګر: ګیګر الماني پوه دی، د پروفیسور مارګین سټرن په قول په لویدیځ کې د پښتو غږ پوهنې اساس همدغــه پــوه ایښی دی. د نوموړي اثر (د پښتو ایتمولوژي او غږ پوهنه) نومېږي چې په (۱۸۹۳ م) کال په مونیخ کې خپور شوی دی.

– تیرین تیف: تیرین تیف یو روسي پښتو پوه دی. د ۱۹ پیړۍ په پیل کې د پښتو ژبې په باب یو کوچنی اثر چې د افغاني (پښتو) ژبې ترجمان نومېده په تاشکند کې خپور کړو، دغه اثر په پخواني شوروي اتحاد کې لومړی تدریسي کتاب ګڼــل کېږي.

– مالیون: مالیون هم یو ختیځ پوه دی، ده د پښتو کیسې ټولې کړې دي.

– تومالو ویچ: تومالو ویچ یو روسي ختیځ پوه دی، ده په روسي ژبه د پښتو ګرامرپه برخه کې یو کتاب لیکلي دي. دغــه کتاب په (۱۹۱۸ م) کې په تاشکند کې چاپ شوی دی.

پروفیسر اسلانوف: ګریګوریویچ اسلانوف د پخواني شوروي د ختیځ پېژندونکو له جملې څخه ګڼل کېږي.

ده په ماسکو کې د پښتو ژبې کورسونه جوړ کړل او د مسکو د ختیځ پېژندنې د انستیتیوټ او د بهرنیو ژبو محصلینو تــه پښتو ژبه زده کوله او تدریس یې ورته کاوه. اسلانوف بر سېره پر دې چې د پښتو ژبې او ادبیاتو د زده کړې پــه علمــي میتودونو یې کار کاوه او لوستی پلان یې ترتیب او تنظیم کاوه، د ډیپلوم او اسپیرانتورۍ د چارو لارښوونه یې هم کولــه.

د ډاکټرۍ په کچه ډېرپښتو پوهان يې روزلي دي.
– ډاکټر بوژي بچکا: په ۱۹۱۰ م کال د پخوانۍ چکوسلواکيا په پراګ کې زېږېدلې، هغه د پښتو ژبې د خج په اړه يــو رساله خپره کړې ده.
– مېرمن کالينينا: مېرمن کالينېنا په ۱۹۲۳م کال د مسکو په ښار کې زېږېدلې او په ۱۹۴۸ کال يې د مســکو د ختــيځ پېژندنې له انستيتيوت څخه د پښتو ژبې په برخه کې ډيپلوم ترلاسه کړ او د پښتو ژبې په څانګه کې د ښوونکې په توګــه مقرره شوه. د خپلې دکتورا تيزس يې د معاصرې ادبي پښتو کې د ګردان ګرامري کټه ګوري و، چې په برياليتوب ســره يې دفاع کړ او د دکتورا علمي درجه يې ترلاسه کړه.
– کوختيناتاتيانا: ميرمن کوختيناتاتيانا په ۱۹۲۶م کال په پخواني شوروي اتحاد کې زېږېدلې او د مسکو د بهرنيو ژبو پــه انستيتيوت کې يې خپلې زده کړې پای ته ورسولې او د خپلې دکتورا تيزس يې پخپلواک افغانستان کې معارف، تر عنوان لاندې دفاع کړ په پښتو ژبه کې يې د کلتوري او ټولنيزو مسايلو په اړه ډېرې مقالې ليکلي دي.
– ولاديميروا سپلېويچ کوشېف: دغه ختيځ پوه په ۱۹۲۷م کال په لېننګراد کې زېږيدلی دی او د لېننګــراد لــه دولتــي پوهنتون څخه يې ډيپلوم ترلاسه کړ، ښاغلي کوشيف د پښتو ادبياتو او پښتو ژبې د تاريخ په باره کې يو لړ مقالې ليکلــي دي:
لنډه دا چې پښتو ژبه نن سبا د يوې مهمې او ژوندې ژبې په توګه د ډېرو بهرنيــو ولســونو او هېوادونــو د پــاملرنې وړ ګرځېدلې ده او د نړۍ په زياترو هېوادونو کې ددغې ژبې په اړه علمي څېړنې او پلټنې کېږي او د رسنيو له لارې هم پــه پښتو ژبه خپرونې کيږي.

**اخځليکونه:**

ــ څېړنپوه عبدالرحيم ځدراڼ، په خارج کې پښتو څېړونکي، پښتو ټولنه، ۱۳۵۳ کا ل، دولتي مطبعه، کابل.
ــ آريانا دايرة المعارف، د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت له خوا، بېلا بېل ټوکونه د کابل چاپ، دولتي مطبعه.

## شپاړسم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | پندونه | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | - د پند پرمفهوم او معنا پوهېدل.<br>- د پند د ګټو په برخه کې معلومات ترلاسه کول.<br>- زده کوونکي پند اورېدلو او پند منلو ته هڅول.<br>- د زده کوونکو د غوږ نیولو د مهارت پیاوړي کول.<br>- د ګرامرپه برخه کې د معلوماتو زیاتول په تېره بیا د نوم او د هغه د ډولونو په اړه د عملي کارونې زده کول.<br>- ټولنیزو ګټورو چارو ته د زده کوونکو هڅول.<br>- د ښو او بدو خصلتونو بیلول او زده کوونکي نیکو او ښو خویونو ته هڅول.<br>- د متن په لنډیز پوهېدل. | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخېستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | په تخته باندې د پند د کلمې لیکل او زده کوونکي په دغه اړه بحث ته هڅول او پوښتنه کول چې څو پندونه او د هغو مفهوم له ځانه بیان کړي. | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د پند د اهمیت او ارزښت په برخه کې زده کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی هر یو زده کوونکی ته وخت ورکوي چې یو، یو پند ولولي او د ارزښت او کارولو په برخه کې یې پخپله ژبه لنډې خبرې وکړي. | - زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده کوونکي په لوړ غږ سره د لوست متن لولي او سم تلفظ ته متوجه کیږي.<br>- زده کوونکي د پند په اهمیت او ارزښت ځانونه پوهوي.<br>- زده کوونکي له ځانه یو، یو پند وایي، مفهوم او د کارولو ځای یې څرګند وي. | |

| | |
|---|---|
| ــ ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د متن نوی کلمات په جملو کې وکاروي. | – زده کوونکي د متن نوې کلمې په جملو کې کاروي وروسته يې بيا په کتابچو کې يادښت کوي. |
| – ښوونکی دوه، دوه تنه زده کوونکي د تختې مخ ته را غواړي چې يو له ځانه يو پند ووايي او بل يې مفهوم او ځای څرګند کړي. | – زده کوونکي د ټولګي په وړاندې په وارسره يو، يو پند لولي او بل زده کوونکی يې مفهوم او د کارولو ځای څرګندوي د هغه مفهوم پخپله ژبه په ساده ډول بيانوي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستۍ برخې د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. | – زده کوونکي په ډله ييزو فعاليتونو کې فعاله ونډه اخلي. |
| – ښوونکی زده کوونکي په ډلو ويشي هرې ډلې ته د فعاليتونه د اجرا کولو سپارښتنه کوي. | – زده کوونکي د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته پخپلواک ډول ځوابونه ورکوي. |
| – ښوونکی پر زده کوونکو باندې د کتاب د وروستي برخې د فعاليتونو د حل سپارښتنه کوي او د ستونزو په وخت کې ورسره مرسته کوي. | – زده کوونکي کورنۍ دنده ياداشت کوي او په کورونو کې سرته رسوي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | |

**اضافي معلومات:**

مال د عمر د سوکالۍ لپاره دی، نه عمر د مال د ټولولو لپاره، يو چا له يو عاقل څخه پوښتنه وکړه چې نيکبخته څوک دی او بدبخته څوک دی؟ هغه ځواب ورکړ: نيک بخت هغه چې وخوري، يوسي. بدبخته هغه چې ومومي او نور يې ترې يوسي.

علم د عمل لپاره دی؟ نه د جاه او د دنيا د ټولولو لپاره.

ملک له خردمندانو جمال مومي، دين د پرهيزګارانو کمال، بادشاهان محتاج د خردمندانو دي، نه خردمندان د دوی.

درې څيزه بې درې څيزه ولاړ نه وي: مال بې تجارته، علم بې لوسته، ملک بې سياسته.

هره خبره چې زړه ته آزار رسوي ته يې مه وايه، پربږده چې بل يې ووايي.

ــ د بخيل ارامتيا تر هر چا لږ ده.

ــ د خپلو لويانو اومخورو درناوی وکړئ، ترڅو تاسې هم د کوچنيانو د درناوي وړ شئ.

ــ درناوی او احترام مشر او کشر نه غواړي، خو د ځوانانو له خوا درناوی هيله کوونکی او هيله راوړونکی دی او د هغوی د ښو کړنو څرګندويي کوي.

ــ د پانګې او پيسو په واسطه د خلکو په زړونو کې ځان ته ځای نه شي موندلای، خو په ښو کړنو او ښو اخلاقو سره د هغوی په زړونو کې ځانته ځای موندلای شي.

ــ د مقاومت او ښه زغم په واسط هر څه ترلاسه کولای شئ. بريالیتوب د هغه چا په لاس کې دی چې په ژوند کې زغم ولري او د ستونزو په وړاندې ټينګ ودربږي.

د بيلګې په توګه يو لږ پندونه پورته ذکر شول. پندونه د لويانو خبرې دي چې په نظم او نثر دواړو شکلونو کې ځای لري. پندونه په حقيقت کې لارښوونې دي چې د زمانې په اوږدو کې تجربه شوي دي. په پندونو کې هم لکه د متلونو په څير لوی او مجرب مطالب را غونډ شوي دي. پندونه په کتابي شکل د ځينو څيړونکو له خوا را ټول شوي او چاپ شوي دي. روزنيزې او تعليمي لوړې ويناوي دي که عمل ورباندې وشي نو د ژوند لارښوونه کوي. په نظمي ډول د پندونو ډيرې بيلګې د پښتو ژبې د کلاسيکو شاعرانو په ديوانونو کې خوندي دي چې يوه لويه پانګه جوړوي.

**اخځليک:** د عبدالقادرخان ګلدسته، د افغانستان د علومو اکاډمي، د پښتو څېړنو نړيوال مرکز، ۱۳۸۳ کال، کابل.

# اوولسم لوست

## د تدريس د لارښود پلان

## د تدريس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
| --- | --- | --- |
| **د لوست موضوع** | د کانکور د آزموينې لپاره چمتووالی | |
| **د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې)** | – د کانکور د آزموينې په برخه کې پوهاوی.<br>– د کانکور د آزموينې پر ارزښت او اهميت پوهېدل.<br>– پوهنتون ته د بريالیتوب لپاره د کانکورپه لارو چارو پوهېدل.<br>– د کانکور د ازموينې لپاره د چمتو والي په څرنګوالي پوهيدل.<br>– د غوږ نيولو او لوستلو د مهارت پياوړتيا.<br>– په متن کې نوې کلمې او لغتونه موندل او د هغو معنا کول.<br>– د ورځنيو خبرو اترو په اړه زيات معلومات ترلاسه کول او په نارينه او ښځينه کلمو پوهېدل. | |
| **د تدريس لارې** | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعاليتونه او فردي فعاليت | |
| **د تدريس وسيلې** | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه او قلم. | |
| **د ارزونې لارې او وسيلې** | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو او ګروپي کارځارل او پايلې يې په کتابچه کې ياداشت کول. | |
| **د زده کړې او تدريس فعاليتونه** | لومړنی فعاليت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقيقې |
| **د انګيزې رامنځته کول** | ښوونکی د لاندې پوښتنې په واسطه زده کوونکي لوست ته متوجه کوي.<br>– د کانکور آزموينه له چا څخه او کوم وخت اخيستل کېږي؟ | ٦ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
| --- | --- | --- |
| – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د ورځنيو خبرو اترو او محاورې د لوست په برخه کې چې د کانکور آزموينې ته ځانګړې شوې دی، خبرې کوي.<br>– دغه لوست څو څو ځله د دوو، يا دريو زده کوونکو له خوا په لوړ آواز په ټولګي کې لوستل کېږي، تر څو د نورو زده کوونکو د پوهاوي کچه هم لوړه شي او ټول زده | – زده کوونکي متن ته غوږ نيسي.<br>– زده کوونکي په په لوړ غږ سره د لوست متن لولي او سم تلفظ ته يې پاملرنه کوي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نيسي او د محاورې يا خبرو اترو د کولو په لارو چارو ځانونه پوهوي. د زيات تمرين په واسطه د خپلې پوهاوي کچه لوړ وي.<br>– دوه زده کوونکي پخپلو منځو کې له ځانه د ټاکل شوي موضوع په اړه محاوره کوي او نور غوږ نيسي. | |

<table>
<tr>
<td>کوونکي يې تمرين کړي.<br>– ښوونکی له دوو زده کوونکو څخه غواړي چې دغې محاورې ته ورته پخپلو منځو کې وکړي او نورزده کوونکي دې غوږ ورته ونيسي.<br>– ښوونکی په ډله ييزو فعاليتونو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستيو پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري او په اړه يې لارښوونه کوي چې په کورنو کې يې په څه ډول وليکي.</td>
<td>– زده کوونکي په ډله ييزو فعاليتونو کې فعاله ونډه اخلي.<br>– زده کوونکي پخپلواک ډول د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي لارښوونې په پام کې نيسي او په کورونو کې کورنۍ دنده سرته رسوي.</td>
</tr>
</table>

**اضافي معلومات:**

ښوونکی دې د خبرو اترو په اړه کومې چې د کانکور د آزموينې په برخه کې تر سره شوې په مفصله توګه زده کوونکو ته معلومات ورکړي چې د کانکور آزموينه کله چې زده کوونکي له ۱۲ ټولګي څخه بريالي فارغ شي بيا پوهنتون ته د ګډون لپاره د کانکور آزموينه تيروي. د کانکور په آزموينه کې زده کوونکو ته ځانګړې فورمه ورکول کېږي، چې په هغې کې د افغانستان د ټولو پوهنتونونه لست شوې وي او هر زده کوونکی چې غواړي د خپلې خوښې وړ پوهنتون او ځانګړې پوهنځی انتخاب کړي په دې شرط چې د نوموړي پوهنځي اختصاصي نمره پوره کړي. که چېرته د بيلګې په توګه کوم زده کوونکی د کابل طب پوهنځی په ځانګړې فورمه کې وټاکي، مګر نوموړی زده کوونکی بيا د طب پوهنځی لپاره پوره نمرې ونه ګټي، نوموړی زده کوونکی نه شي کولای چې نوموړي پوهنځي ته شامل شي، البته کولای شي په هغه صورت کې چې تر طب پوهنځي نه وروسته يې په آزموينه کې د انجينري يا د حقوقو پوهنځي نمرې پوره کړي وي په هغه کې شامليږي، خو که چېرته د پوهنتون د پوهنځيو ځانګړې او ټاکلي نمرې ونه ګټي، هغوی بيا د لوړو زده کړو انستيټيوټونو ته شامل کېدای شي.

د کانکور په آزموينه کې د خپل استعداد په کچه پوهنځی ټاکل او د ځوابونو پاڼه په سمه توګه حل کول او همدارنګه د خپل نوم او ID کارټ نمره په سمه توګه د ځوابونو په پاڼه کې ليکل ډېر ارزښت لري، که چېرته څوک د خپل کارت نمره ونه ليکي، يا د يوې پوښتنې د (الف) او (ب) ځواب دواړه په نښه کړي د ځوابونو د پاڼې په شمېر کې بدلون راځي او کمپيوټر بيا هغه ټول غلط ګڼي، ددې لپاره چې حساسه آزموينه په بريالي توګه تر سره کړي د کانکور د آزموينې په ډګر او صحنه کې د استاد لارښوونو او د خپلو ځوابونو پاڼې او د خپلې خوښې پوهنځيو د ټاکلو او غوره کولو په برخه کې ډېردقت او پاملرنه وکړي، نو بيا کولای شي خپلې هيلې او آرمان ته ورسېږي يا د خپلې خوښې وړ پوهنځي ته په هغه صورت کې که يې ښه لوست ويلي وي بريالی کيدای شي.

ښوونکی کولای شي چې په محاوره کې نوي کلمې په زده کوونکو تکرار کړي ترڅو زده کوونکي په هره نوې محاوره کې د معلوماتي برخې ترڅنګه نوي کلمات هم زده کړي او په خبرو اترو کې يې وکار وي. ښوونکی کولای شي چې زده کوونکو ته ورته موضوعات وټاکي او پر زده کوونکو باندې د محاورې تمرينونه اجرا کړي.

# اتلسم لوست

## د تدريس د لارښود پلان

**د تدريس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | هنري ــ ادبي نثر | |
| د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې) | – د نثر پېژندل.<br>– د بڼې او محتوا له مخې د اوسني نثر له ډولونو سره آشنايي پيدا کول.<br>– د نثر په لغوي او اصطلاحي معنا باندې پوهېدل.<br>– د لوستلو او غوږ نيولو مهارت پياوړتيا.<br>– د لوست گرامري برخې زده کول.<br>– په متن کې له نويو کلمو او لغتونو سره آشنايي پيدا کول. | |
| د تدريس لارې | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، گروپي فعاليتونه، فردي فعاليت | |
| د تدريس وسيلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير او کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو او گروپي کارڅارل او پايلې يې په کتابچه کې ياداشت کول. | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | لومړنی فعاليت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقيقې |
| د انگيزې رامنځته کول | ښوونکی دې د يوې پوښتنې په طرحه کولو سره لوست ته لاره پرانيزي او زده کوونکي دې بحث ته وهڅوي:<br>زموږ ورځنۍ ساده خبرې له هنري – ادبي نثر سره څه توپير لري؟ | ٦ دقيقې |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | **د زده کوونکو فعاليتونه** | ۳۵ دقيقې |
| – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د نثر او بيا د هنري نثر په اړه زده کوونکو ته معلومات وړاندې کوي.<br>– ښوونکی څو تنه زده کوونکي غوره کوي چې د هنري ادبي نثر په اړه خبرې وکړي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چې نوی کلمات په جملو کې وکاروي. | – زده کوونکي متن ته غوږ نيسي.<br>– زده کوونکي په لوړ غږ سره د لوست متن لولي او سم تلفظ ته ځير کيږي.<br>– زده کوونکي د هنري – ادبي نثر ځانگړتياوې او په ډولونو ځانونه پوهوي.<br>– څو تنه زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د هنري – ادبي نثر په ځانگړتياو او د ډولونو په اړه خبرې کوي.<br>– زده کوونکي د لوست نوې کلمې په جملو کې کاروي، بيا يې پخپلو کتابچو کې ياداښت کوي. | |

| – ښوونکی له ډېرو زده کوونکو څخه د هنري نثـــر پـــه اړه پوښتنې کوي او په دې توګه ډېرو زده کوونکو ته په لوست کې د ګډون زمينه برابروي. | – زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
|---|---|
| – ښوونکی په ډله ييز فعاليت کې له زده کوونکو سره مرسته کوي. | – زده کوونکي په ډله ييز فعاليت کې فعاله ونډه اخلي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروســـتيو پوښـــتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. | – زده کوونکي پخپلواک ډول د متن د وروستۍ برخـــې پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | – زده کوونکي پخپلو کورونو کې کورنۍ دنـــده ســـرته رسوي. |

**اضافي معلومات:**

د هنري (ادبي) نثر پېژندنه: د ادب يوه ډېره عامه او مشهوره پېژندنه داسې ده:

هر هغه وينا، ليکلې وي که ګړنې (شفاهی)، نظم وي که نثر، خو چې هنري ارزښت ولري ادب بلل کېږي.

هنريت يا هنري ارزښت هغه ځانګړ نه ده چې ادبي او نورې عامې، عادي ليکنې سره بيلوي. د هنري يا ادبي نثر په ليکنـــه يا د نثري ادب په پنځو نه کې د ليکوال ذوق، احساس او تمايل د يو مطلب يا واقعيت د افادې لپاره بنستيز ارزښـــت او اهميت لري. ليکوال هغه څه چې لېدلي، اورېدلي، احساس کړي او يا يې په ذهن او خيال کې تيريـــږي بيـــانوی، خـــو د تحقيقی او علمي ليکنو په څير دليل راوړلو ته هيڅ اړتيا نه لري.

د ادبي يا هنري نثر په پنځو نه يا ليکنه کې تخيل ستر رول لري، خو د ليکوالۍ په دغه ډګر کې ددغه ځواک لـــه تخيـــل څخه مرسته غوښتل يوازې او يوازې تر هغې لازم دي، چې پيښې ته د باور وړ ښکلا او ځلا ورکړي. په هغې کې د منلـــو او کشش داسې جذبه او ځواک پيدا کړي چې زړونو ته په آسانۍ او ژر لار وکړي. نه تر دې اندازې او يا په دې بڼه چې هغه ادبي ليکنه سليم عقل او انساني پوهې ته د منلو او قبلولو وړ ونه بريښي او په دې وسيله د خبرې ارزښـــت کـــم يـــا بيخي له منځه ولاړ شي.

په ادبي ټوټه، تکل، او ادبي انځور کې بيا يو څه توپير لري، د تخيل لوړتيا، د مفهوم ژورتيا او د الفاظو رنګينـــي پکـــې د داستاني ادبياتو په پرتله زياته وي او کله کله دومره خوږ او له ډير لوړ تخيل څخه پکې کار اخيستل شوی وي چې د يـــو عالي شعر په څير خوند او کيفيت لري، له همدې کبله ورته منثور شعر هم وايي. همدارنګه په طنز کې بيا دا نثر لږ و ډېر بېل خوند او رنګ لري او دداسې ادبياتو په څير صراحت پکې نه وي، بلکې هر څه په اشارو او کنايو بيان شوي او پـــرې پوهېدنه هم ژور فکر او ځيرکتيا غواړي، خو په عامه توګه د هنري ادبي نثر ځانګړنې او د جوړښت توکي تخيل، د خبرې زړه راښکون، ساده ګي او رواني، د لفظ او معنا برابري او د ليکنې ځانګړی سبک بلل شوی دی.

د هنري نثر د جوړښت اساسي توکي او ځانګړنې: هنري ارزښت د ادب مهمه او بنسټيزه ځانګړنـــه ده او تخيـــل ددغـــه هنري ارزښت اساسي برخه جوړوي، نو د هنري ادبي نثر لومړنۍ ځانګړنه هم تخيل بللې شو.

همدغه تخيل دی چې يوې عادي پيښې ته ښکلا وربښي، بڼه او لوری ورته ټاکي ټولې ادبي پديدې که څه هم حقيقـــي او ريښتينې پيښې وي د تخيل په وړانګو د ښکلا پوړ ته رسېږي.

په ادبي هنري نثر کې د ليکوال تصور او تخيلي ځواک ډېر ستر او ارزښتمن نقش لري، چې ليکوال د خپل تخيلي ځواک په ملتيا د ليکوالۍ د فني مهارتونو په وسيله په الفاظو کې د منظر کشۍ او صحنه جوړونې چارې په ډېردقت سرته رســـوي او حالات يا واقعيتونه په الفاظو کې داسې انځوروي چې لوستونکی يا اورېدونکی فکر کوي چې هر څه پخپلـــو ســـترګو

ويني او ځان کټ مټ په صحنه کې شامل احساسوي.
ساده ګي او رواني د هنري ادبي نثر يوه بله ډېره مهمه ځانګړنه ده، پخوا به له ذهن او محاورې څخه لرې کـــړکېچن او پيچلي کلمات د لوړې او عالي انشاء يا ليکوالۍ غوره ځانګړنه بلل کېده، خو اوس دغـــه ډول ليکنـــه هيڅکلـــه ادبـــي معقوليت او عام تپولنيز ښکلا نه شي ترلاسه کولای او نه يې څوک د غوره ادبي آثارو په ډله کې شمېري. څومره چې يوه ليکنه ساده، طبيعي، بې تکلفه او عام فهمه وي، لوړ ادبي ارزښت لري.
د خبرې زړه راښکون د ادبي نثر بله ځانګړنه ده چې هغه د لوستونکي پر ذهن د معنا او مفهوم د اغيز لپاره ډېر مؤثر دی. زړه راښکونکې خبره د ليکوا ل فکر، عواطف په ډېرې چټکۍ سره لوستونکي يا اورېدونکی ته ور ليږدوی د لـــيکوال او لوستونکي د ذهني فضا په پيوستون کې ډېره مرسته کوي. د لفظ او معنا برابري د هنري ادبي نثر د جوړښت يـــوه بلـــه ځانګړنه ده، ادبي هنري نثر بايد داسې وي چې لوستونکی يا اورېدونکی يې له معنا پرته بل څه ته پاملرنه ونه کړي.
په لنډه توګه ويلای شو چې ادبي هنري نثر د ليکنې سبک له مخې له نورو عادي نثرونو سره ډېر جوت توپير لري، تخيل، منظر کشي، ساده ګي، د کلمو او خبرو زړه راښکون يې د جوړښت ډيرې مهمـــې برخـــې او ځـــانګړنې دي، چـــې د لوستونکي يا اورېدونکي معنوي او روحي تنده په ډېره اغېزمنه توګه خړوبوي، ژورې اغيزې ښندي، عواطف او جذبات را لړزوي، په هنري ادبي نثر کې د پيغام مساله ډېره مهمه ده د همدغو ادبياتو يا د همدغه ادبي فورم له لارې لوستونکي يـــا اورېدونکي ته د پيغام ليږل د هنري ادبياتو يوه بله مهمه ځانګړتيا ده.

**اخځليکونه:**


ـ سيد محی الدين هاشمي، د ادبي ليکنو توکې او ځانګړنې، کابل مجله د افغانستان د علومو اکاډمۍ، د ژبو او ادبيـــاتو مرکځ، ۱۳۸۲ کابل.

ـ سيد محی الدين هاشمي، په پښتو ادب کې د هنري نثر د نويو ادبي ژانرونو پيدايښت او پايښت، د افغانستان د علومـــو اکاډمۍ، علمي څېړنيزه پروژه، د پښتو څېړنو نړېوال مرکز، ۱۳۸٦ کال.

## نولسم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرح | | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|---|
| | د کندهار پښتو ادبي انجمن | | د لوست موضوع |
| | – د ادبي انجمن او ادبي ټولنې په معنا او مفهوم پوهېدل.<br>– د کندهار د پښتو ادبي انجمن سره آشنا کېدل.<br>– د هېواد د تیرو فرهنګي هڅو او فرهنګپالو له فعالیتونو څخه خبرېدل.<br>– د لوستلو او غوړ نیولو مهارت پیاوړی کول.<br>– د لوست ګرامري برخه زده کول. | | د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) |
| | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | | د تدریس لارې |
| | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | | د تدریس وسیلې |
| | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارڅارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | | د ارزونې لارې او وسیلې |
| ۴ دقیقې | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ۶ دقیقې | – انجمن څه ډول ځای دی؟<br>– ادبي ټولنه او انجمن سره توپیر لري او که نه؟ | | د انګیزې رامنځته کول |
| ۳۵ دقیقې | د زده کوونکو فعالیتونه | | د ښوونکي فعالیتونه |
| | – زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي په لوړ غږ سره د لوست متن لولي.<br>زده کوونکي غوږ نیسي او مهم ټکي پخپلو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کوونکي د لوست نوې کلمې په جملو کې کاروي.<br><br><br>– زده کوونکي په وار سره پخپلو خبرو کې د کندهار د ادبي انجمن کارونه بیانوي.<br>– زده کوونکي پخپلواک ډول د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>– زده کوونکي د متن لنډیز ته غوږ نیسي. | | – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی له زده کوونکو سره د ادبي انجمنونو په تېره بیا د کندهار د ادبي انجمن په اړه خبرې کوي او یو لړ مهم معلومات وړاندی کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چې نوی کلمات په جملو کې وکاروي.<br>– ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده کوونکي را غواړي چې د کندهار ادبي انجمن په اړه خبرې وکړي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستیو پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. |

| – ښوونکی د متن لنډیز بیانوی. | ــ زده کوونکي د متن لنډیز ته په غور سره غوږ نیسي. |
| --- | --- |
| – ښوونکی په څو پوښتنو سره د لوست ارزونه کوي. | – زده کوونکي په وار سره پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | – زده کوونکي کورنۍ دنده په کورونو کې بشپړوي. |

**اضافي معلومات:**

د پښتو ادب تاریخ مطالعه څرګندوي چې امیرکروړ سوری(۱۳۹–۱۵۴ هـ ق) له وخته بیاد غوریانو، او د ملتان د لودیانو تر وختونو پورې پښتو ژبه په دربارونو کې پالل کېده، خو د پښتو پالنې دغه ښه د پښتنو شاعرانو او ادیبانو د پالنې له لارې تر سره کېده او یا هم پخپله شاهانو پخپله مورنۍ ژبه شعرونه ویل، خـو کله چې په ۱۱۱۹ هــ.ق. کال د هوتکو غورځنګ په کندهار کې د هېواد یوه برخه د پردیو له ولکې څخه خلاصه کړه، یو ملي او افغاني دولت جوړ شو، له هغه وخت نه په اساسي ډول د ژبې د علمي او ادبي ودې لپاره کار پیل شو، د ملي مشر میرویس نیکه علم پالوونکی او ادیب زوی شاه حسین هوتک د کندهار د نارنج په ماڼۍ کې ادبي دربار جوړ کړ او د پښتو پالنې کار په اساسي او علمي ډول همدغه مهال پیل شو. ددغه ادبي دربار په باب زموږ سند د پټې خزانې متن دی، محمد هوتک (۱۰۸۴ هــ.ق. زده کړی) کښلي دي، بادشاه عالم پناه په ارګ د قندهار هغه قصر چې نارنج باله شي، هلته په هفته کې یوه ورځ دربار کا په کتب خانه کې او مجلس کې علما جمع کېږي، او شعراء او فضلا ټولوي) دغه ادبي دربار غړي درلودل، شاه حسین هوتک به پخپله پکې ګډون کاوه، علماوو او شعراوو ته یې د آثارو او کتابونو په مقابل کې ډالۍ ورکولې، د همدغه تشویق او هڅونې له کبله ډېر مهم آثار ولیکل شول، د پښتو د ادبي تاریخ ارزښتناکه خزانه د همدغه ادبي دربار له کتابونو څخه شمېرل کېږي.

تر دې وروسته د پښتو پالنې ددغه ډول مرکز څرک نه لرو، خو کله چې په اماني روښانه عصر(۱۳۳۷–۱۳۴۷ هــ ق) د هېواد د نورو پرمختګونو ترڅنګ پوهې او زده کړې ته هم پاملرنه وشوه، د پښتو پالنې لپاره هم یو مرکز د پښتو مرکې (مرکه د پښتو) په نامه جوړ شو او د وخت د اساسي تشکیلاتو له نظامنامې ښکاري چې دغه مؤسسه د اماني دورې له نورو تشکیلاتو او مؤسسو سره یو ځای له منځه ولاړه، کله چې محمد نادرشاه (۱۳۰۸– ۱۳۱۲ ش) هېواد ته خلاصون ورکړ د پخوانۍ دورې ځینې علمي او فرهنګي مؤسسې بېرته له سره ژوندۍ شوې، خو د پښتو پالنې مرکز دا ځل بیا د پښتو په لرغونې او تاریخي مرکز کندهار کې د پښتو ادبي انجمن په نامه د ۱۳۱۱ ش کال د لیندۍ په میاشت کې جوړ شو.

دغه انجمن تر ۱۳۱۴ ش پورې په کندهار کې فعالیت کاوه او د پښتو په نامه یې یوه مجله له هماغه ځایه خپروله په همدغه کال انجمن کابل ته ولېږدید، پښتو مجله له کابل څخه خپره شوه، دغه ادبي انجمن هم ځینې پښتو آثار خپاره کړل.

په ۱۳۱٦ ش کال د غوایي په میاشت کې د پښتو ادبي انجمن او د کابل ادبي انجمن له یو ځای کېدو څخه پښتو ټولنه منځ ته راغله.

د کندهار د پښتو ادبي انجمن چې په هېواد کې د فرهنګي او ادبي چارو د پیل لپاره ادبي او علمي بنسټ و، چې وروسته د کابل ادبي انجمن او پښتو ټولنه بیا د افغانستان د علومو اکاډمي، د همدغه مشهور ادبي فرهنګي مرکز په بنسټ رامنځته شوې ده.

د کندهار ادبي انجمن زموږ د فرهنګي چارو د سمبالښت ډېر غوره او مهم مرکز ګڼل کېږي، دهمدغه فرهنګي بنسټ له هڅونې او ښېګڼو څخه یوه دا هم ده چې کندهار د نورو ولایتونو په پرتله ډېر فرهنګي، علمي او ادبي شخصیتونه افغاني ټولنې ته وړاندې کړي دی ، د بیلګې په توګه علامه پوهاند عبدالحي حبیبي، پوهاند عبدالشکور رشاد، محمد ابراهم خواخوږي، اکادیمسین کاندید محمد ابراهیم عطایي، استاد عبدالروف بینوا، محمد علم بځرکی، عبدالروف ویسا او په همدغه شان د فرهنګ د ډګر نور نومیالي چې د همدغه ولایت اوسیدونکي وو، او د پښتو ژبې او ادب لپاره یې د قدر وړ خدمتونه کړي او ډېر ارزښتناک آثار ورڅخه په میراث پاتې دي، چې نومونه به یې د تل لپاره ورباندې ژوندی پاتې او د درناوی وړ به وي.

**اخځلیک:** د پښتو ټولنې تاریخچه، د افغانستان د علومو اکاډمي، د زیري د جریدي د مدیریت له خوا، ۱۳۵٦ کال، دولتي مطبعه.

## شلم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د شاعر زړه | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | – شاعرپېژندل.<br>– د عامه ولسي خلکو او شاعرترمنځ توپیر کول.<br>– د قیام الدین خادم له ژوند لیک او اثارو سره آشنا کېدل.<br>– د نوموړي شعر په مفهوم او معنا پوهیدل.<br>– د لوستلو او غوږ نیولو د مهارت پیاوړتیا.<br>– په متن کې له نویو کلمو او لغتونو سره آشنا کېدل. | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارڅارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی دې د لاندې پوښتنې په کولو سره زده کوونکي لوست او بحث کولو ته وهڅوي.<br>ــ شاعر چاته ویل کیږي او د شعر لوستلو ګټې څه دي؟ | ٦ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی په متن کې د راغلي شعر په اړه چې د شاعر احساس او غوښتنه پکې انځور شوې ده زد کوونکو ته په هر اړخیزه توګه معلومات ورکوي.<br>– ښوونکی په دغه بهیر کې ددغه شعرد ویونکی قیام الدین خادم د شعرد ځانګړتیا په اړه هم هغوی ته معلومات ورکوي. | – زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي په لوړ غږ متن لولي او د کلماتو سم تلفظ ته پاملرنه کوي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي او د شعر په اړه معلومات ترلاسه کوي.<br>– زده کوونکي د قیام الدین خادم پر ژوند او علمي کارونو ځانونه پوهوي. | |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده کـــوونکي را غواړي چې د شعر په اړه وغږیږي. | – زده کوونکي د ټولګي په وړاندې په وار سره د شاعر د زړه د شعر په برخه کې دوې دقیقې خبرې کوي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته په خواږه او زړه راکښـــونکي غږ د شاعر زړه د شعر دیکلمه ور زده کوي. | – زده کوونکي د شاعر زړه د شعر دیکلمه زده کوي. |
| – ښوونکی د لوست د تمرین د پوښتنو پـــه بشـــپړولو او حلولو کې له زده کوونکو سرته مرسته کوي. | – زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونـــه وایـــي او د کتـــاب وروستي فعالیتونه حلوي. |
| – ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي. | – زده کوونکي د لوست لنډیز غوږ نیسي. |
| – ښوونکی په څو پوښتنو ســـره د زده کوونکـــو ارزونـــه کوي. | – زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | – زده کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سرته رسوي. |

**اضافي معلومات:**

استاد قیام الدین خادم زموږ د هېواد مشهور، پوه، لیکوال، شاعر، ژورنالیست او ټولنیز شخصیت و.

هغه د خپل ژوند په بېلابېلو دورو کې د زیري، اتحاد مشرقي، افغان ولس د جریدو، د کابل مجلـــې او طلـــوع افغـــان، اصلاح او د هېواد ورځپاڼو مسؤول مدیر پاتې شوی، د هېواد له مجلو، جریدو، ورځپاڼو او راډیو سره یې پرلپسې قلمـــي همکاري کړې ده.

قیام الدین خادم د ملا حسام الدین زوی او د ملا علی ګل آخوندزاده لمسی دی، دی پخپله لیکي: زما د پـــلار پـــلار او دارنګه زموږ وړاندې سلسله ټول د خپل وخت د مروجه تعلیم په اساس تعلیم یافته او عالمان وو، زموږ په سلســـله کـــې نالوستی سړی نه دی تېر شوی، موږ د پلار له خوا د کونړ د شګي د آخوندزاده ګانو څخه یو، د شګي خلـــک پـــه قـــام زاخېل دي چې د مومندو پښتنو یو قام دی، مګر ما د خپل پلار څخه مکرر دا اورېدلي دي چې زموږ وړانـــدې نیکـــه د څوکنو میا عمر صاحب دی. دغه ده چې زما د نامه سره په اخبارونو کې کله(کاموی) او زاخېلی او کله میـــا عمـــرزی لیکل شوی، ولې ((زما خپل تخلص خادم دی. کله کله مې د خپل نامه سره سیلاني هم لیکلی دی ځکه چې زما مـــورنۍ نیکه سید عبدالرحمن سیلانی نومېده چې فقیرصاحب یې بولي)).

دده د خپلې لیکنې له مخې په ۱۳۲۵ هـــ ق کال په کامه کې زېږېدلی دی.

د صرف او نحوې کتابونه یې په خپل کور کې ویلي، بیا یې د علومو د زده کړې لپاره پنځلس کاله سفر کړی.

استاد خادم د زیري د جریدې د مسوول مدیر او د پښتو ټولنې د تالیف او ترجمې د مدیر پـــه توګـــه خپـــل علمـــي او ژورنالیستیکي فعالیتونه تر ډېرې مودې پورې سرته ورسول او په ۱۳۲۰ هـــ ش کال د پښتو ټولنې د مرستیال په توګـــه وټاکل شو.

په پښتو ټولنه کې د استاد خادم د کار دغه اوه کلنه دوره ډېره فعاله او پر ثمره ده. هغه د کابل کالنۍ لپاره ډېرې لیکنـــې وکړې او د څو کلونو د کالینو په ترتیب او تنظیم کې یې خورا اړینه ونډه واخیستله.

استاد قیام الدین خادم د پښتو ژبې او ادب لپاره د یادونې وړ کار تر سره کړی، هغه د ځینو چاپ شویو آثـــارو نومونـــه دادي:

- پښتونولي.
- د پښتو ننی لیکوال.

- د کوچنیانو اخلاقي پالنه
- اصحاب کرام
- روهي گلونه
- خیالي دنیا
- نبوغ او عبقریت
- نوې رڼا
- لرغوني پښتانه قومونه

د یوې څېړنې له مخې د استاد خادم د چاپ شویو آثارو شمېر (۳۰) او ناچاپ یې(۲٦) ته رسېږي.

استاد خادم په ۱۳۵۸ ل کال کې د ورپېښې ناروغۍ له امله د علي آباد په روغتون کې له دې نړۍ څخه د تل لپاره سترگې پټې کړې.

دلته د ملي ادب او ژورنالېزم خادم له اثر څخه د استاد خادم یو شعر د حسن ختام په توگه رانقلوو:

زه څهووایم چې څه او د څه کـــار یم؟ خـو د تللي قافلې د پښو غبار یـــم

د فطـــرت باغوان کرلی یم پخپله په دامان کې غـــورېدلی لاله زار یم

ځانگې نه رامـــاتوم چې مېوه وخورم چې مېـــوې نثاروي هغه شـــاخساریم

گلان اخلمه د گلـــو پـــه بدل کې سوداگر نه یم د گلو خـــریدار یم

ماڼو، نه یـــم چې د بل په اوږو سورځي ((د کشتیغـــوندې د خلکو بار بر داریم))

چې معـــراج د سرېتوب ته ځان زینه کا
زه خـــادم د هغو خلکو خدمتگار یم

اخځلیکونه:

_ سرمحقق عبدالله خدمتگار بختانی، د ملي ادب او ژورنالېزم خادم، د افغانستان د ژورنالېستانو اتحادیه، ۱۳٦۸ کـال. کابل.

_ عبدالرؤف بېنوا، اوسني لیکوال، لومړی ټوک، کابل ۱۳۴۰ هـ .ش

## يوويشتم لوست

### د تدريس د لارښود پلان

### د تدريس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | د پښتو ولسي ادبيات | | |
| د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې) | – د پښتو له ولسي ادبياتو سره آشنايي پيدا کول.<br>– په ټولنيز ژوند کې د ادبياتو پر ارزښت پوهېدل.<br>– د لوستلو او ليکلو د مهارتونو پياوړي کول.<br>– د ولسی ادبياتو په مهمو ځانگړتياوو پوهېدل.<br>– د لوست د گرامري برخي زده کول. | | |
| د تدريس لارې | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، گروپي فعاليتونه او فردي فعاليت | | |
| د تدريس وسيلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه او قلم. | | |
| د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو او گروپي کارڅارل او پايلې يې په کتابچه کې ياداشت کول. | | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | لومړنی فعاليت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او د کورني کار کتنه | | ۴ دقيقې |
| د انگيزې رامنځته کول | – ښوونکی دې د لاندې پوښتنو په کولو سره لوست ته لاره پرانيزي.<br>– د ولسي ادبياتو کومه بيلگه پيژنئ؟<br>– د ولسي ادبياتو بيلگې يوازې په نظم کې دي او که په نثر؟ | | ۶ دقيقې |
| د ښوونکي فعاليتونه | | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
| – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی متن په څو برخو ويشي، د ولسي ادبياتو په هره برخه کې زده کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>– ښوونکی د وينا لپاره د ټولگي په وړاندې زده کوونکي راغواړي چې دولسي ادبياتو په بېلگو خبرې وکړي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چې نوي کلمات په جملو کې وکار وي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستيو پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. | | – زده کوونکي متن ته غوږ نيسي.<br>– څو تنه زده کوونکي په وار سره متن په لوړ غږ لولي او نور يې تلفظ څاري.<br>– زده کوونکي د پښتو د ولسي ادبياتو په ډولونو او د دوی ترمنځ په توپيرونو ځانونه پوهوي.<br>– څو تنه زده کوونکي پخپله خوښه د ټولگي په وړاندې د پښتو د اولسي ادبياتو په ډولونو او نمونو خبرې کوي.<br>– زده کوونکي د لوست نوې کلمې معنا کوي او بيا يې په جملو کې کاروي.<br>– زده کوونکي پخپلواک ډول د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځواب وايي. | |

| – ښوونکی زده کوونکي د متن د لوستلو په موخه پــر دوو ډلو ويشي او هره ډله چې سم لوست ووايـــي، د هغـــوی ستاينه کوي.<br>– ښوونکی په ډله ييزو فعاليتونو کې له زده کوونکو ســـره مرسته کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | – زده کوونکي په ډله ييز فعاليت کې فعاله ونډه اخلي.<br>– زده کوونکي کورنۍ دنده پخپلو کورونو کـــې ســـرته رسوي. |
|---|---|

**اضافي معلومات:**

پښتو ولسي ادبيات د پښتنو د ټولنيز ژوند خورا بډايه خزانه ده، د پښتنو په کليو او بانډو کې چې د سواد او لوست کچه ډېره ټيټه ده، په همدغو سيمو کې د پښتو د اولسی ادبياتو، يا شفاهي او ناليکلي ادب، يا د عاميانـــه ادب خـــورا زيـــاتې بېلابېلې بڼې لېدل کېږي چې دا په واقعيت کې د ټولنيز ژوند په اړه د همدغو ولسي شاعرانو د ژوند پخـــې تجربـــې دي، چې نسل په نسل يا خوله په خوله تر موږ پورې را رسېدلي او يوه زياته برخه يې اوس ليکلې بڼه لري، خو درنه برخه يې لا د ولس په لرې پرتو سيمو کې د وګړو په سينو کې خوندي پاتې ده.

کله چې ددغه ولسي خزانې په لويو برخو خبرې کوو، نو هغه پر دوو برخو ويشو:

منظوم ولسي ادبيات: دغه ادبيات بيا په خپل وار سره په نورو دوو ډلو ويشل کېږي: عام ولسي شعرونه يـــا ســـندرې او خاص ولسي شعرونه(سندرې).

د عامو ولسي شعرونو ويناوال او ويونکي معلوم نه وي چې ډولونه يې په لوست کې راغلي دي.

او خاص ولسي شعرونه: هغه شعرونه او سندرې دي چې ويونکي او وينا وال يې معلوم وي: بيلګې يې د لوست پـــه مـــتن کې راغلي دي.

پخپله ادب د عربي ژبې د هذب له کلمې څخه اخيستل شوی چې د بي عيب په معنا دی، عربو به په عربي ژبه کې د ونې هغه لويه څانګه چې له وړوکو څانګو او پاڼو څخه به پاکه او صافه شوه. هغه به يې مهذ به ګڼله يعنې پاکه او صافه او بـــي عيبه يې ګڼله، چې ورو ورو دغه مفهوم له محسوساتو څخه معقولاتو ته لاره پيدا کړه، اوس يې د جمعې بڼه د ادبياتو پـــه نامه يادېږي.

متل او اصطلاح: متل هغه خوږه، پخه او لنډه وينا ده چې پراخ مفهوم يې په ځان کې نغښتی وي. په پښتو ژبـــه کـــې دوه ډوله متلونه شته چې يو يې منظوم متلونه او بل ډول يې منثور متلونه دي.

منظوم متل: ژرنده که د پلار ده هم په وار ده.

منثور متل: اختر پټ مېږه نه دی.

اصطلاح او محاوره: هم پخه او لنډه وينا ده خو د متل په شان عامه او دودنه وي د کلمو معنا يې په اصـــلي مفهـــوم نـــه استعمالېږي.

زياتره په مصدري(ل) پای ته رسېږي لکه: آسمان ته کتل – د بې پروايي په مفهوم.

يا لاس ورکول: د مرستې او همکارۍ په مفهوم او داسې نور اصطلاحات. د مرکزي آسيا په ژبو کې پښتو يوه داسې ژبـــه ده چې د شفاهي ادبياتو يا ولسي ادبياتو يوه درنه زېرمه لري. ددې سيمې په ژبو کې ښايي د بلې يوې ژبې شفاهي ادبيـــات هم د پښتو په پرتله ډېر او رنګين نه وي.

د پښتو د ولسي ادبياتو رنګارنګي او په دې ژبه کې د نورو ژبو په پرتله ددغسې ادبي ــ هنري توکـــو ډېرښـــت ځينـــې

ځانګړي دلایل او عوامل لري، چې د پښتنو د ټولنیز رغښت، جغرافیایي موقعیت، د ژوند د دود او ودې، سوله فرهنګـــي پرمختګ او نورو قبیلوي جوړښتونو په رڼا کې ځانګړې ځیړنې او خبرې پرې کېدای شي.

په پښتو کې د شفاهي او ولسي ادبیاتو د پراخو زېرمو شتوالی له هنر او ادبیاتو سره زموږ د ولس پراخو پرګنـــو د مینـــې ښکارندویي کوي. او دا راته ښیي چې زموږ خلک که په پراخو سوځنده دښتو او نا پایه بیدیا وو کې په ډېره ابتدایي بڼـــه ژوند کوي او یا په غرونو او درو کې اوسي، نالوستي دي او یا د نوی تمدن له بریاوو لرې پاتې شوي، خـــو هنـــري ذوق لري او خپله هنري تنده د ځینو داسې سندرو او نورو هنري ادبي توکو د ایجاد او خوروِلو له لارې خړوبوي، که د خپلې ټولنې د شرایطو په رڼا کې په ریښتینې بڼه وارووزل شي. نو دغه په ولس کې را پیدا شوي ادبیات او سندرې تر ځینو ډېـــرو لیکلیو آثارو ارزښتمن دي او موږ کولای شو د خپل فرهنګي تاریخ د یو ټوک په توګه حساب پرې وکړو.

**اخځلیکونه:**


ــ سرمحقق زلمی هېوادمل، د پښتو ولسی ادبیات ۱۳۷٦ کال.

ــ څېړنپوه علی محمد منګل، ولسي پوهه، د ادب او فرهنګ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۵٦ کال.

ــ څېړنپوه محمد عارف غروال، غرنۍ سندرې، پښتو ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳٦۰ کال.

# دوه ویشتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | سید شمس الدین مجروح | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | – د پښتو ادب د معاصرې دورې د لیکوالانو او شاعرانو پېژندنه.<br>– د معاصرو لیکوالانو له آثارو سره آشنایي.<br>– د هېواد د ځینو نومیالو پېژندنه.<br>– د سیدشمس الدین مجروح له ژوند او شعر سره آشنایي پیدا کول.<br>– د معاصرو لیکوالانو له اصلاحي، روزنیزو او اخلاقي لیکنو څخه د خپل ژوندانه په هوساینه کې ګټه اخیستل.<br>– په متن کې د فعل پېژندنه.<br>– د ژبنیو مهارتونو پیاوړتیا.<br>– نوي لغتونه زده کول او په جملو کې کارول. | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارخارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | د لاندې پوښتنې په کولو سره د ا نګیزې پیدا کول.<br>ــ کوم معاصر شاعر او لیکوال پېژنئ؟ | ٦ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د پښتو د معاصرې دورې د مشهور لیکوال او شاعر سید شمس الدین مجروح د ژوند، آثارو او شاعرۍ په اړه زده کوونکو ته هر اړخیز معلومات وړاندې کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چې نوې کلمې په جملو کې استعمال کړي. | – زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي په لوړ غږ سره د لوست متن لولي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي د وینا په بهیر کې د سید شمس الدین مجروح د ژوند او شاعرۍ پر ټولو اړخونو ځانونه پوهوي او د خپلې پوهې کچه لوړوي.<br>ــ زده کوونکي د متن نوې کلمې پیدا او په جملو کې تر کارولو وروسته یې پخپلو کتابچو کې له ځان سره یاداشت کوي. | |

| – ښوونکی په ډله ییزو فعالیتونو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده کوونکي را غواړي چې د لوست لنډیز پخپله ژبه ووایي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستۍ برخې د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته د کورنۍ دندې د بشپړولو په اړه لارښوونه کوي. | – زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>– زده کوونکو په وار سره د متن لنډیز پخپلو خبرو کې وایي.<br>– زده کوونکي کورنۍ دنده یاداشت کوي او د ښوونکي د لارښوونې سره سم یې په کورونو کې بشپړوي. |
|---|---|

**اضافي معلومات:**

سید شمس الدین مجروح د اروانښاد سید حضرت شاه، زوی دی، چې د ترګړو په پاچا صاحب مشهور و.

په (۱۳۲۳ ق) کال د کونړ (د شین کوړک) په کلي کې زیږېدلی دی. ده که څه هم متداوله علوم لــه کورنی‌معلمینــو څخه ولوستل، خو مجروح تر تدریس او تعلیم نه زیات له خپل ذوق، تفکراو مطالعاتو څه مستفید شوی دی.

دی پخپله په یوه لیکنه کې د ځان په اړه لیکي: ((ما چې د خاورو خاشاکو د لوبو دوره طی کړه او پاڅېدم جــامې مــې وځنډلې یعنې د کوچنیتوب لومړۍ دوره مې پای ته ورسوله، بیا مې غیر د کتاب او قلم نه بله مشغله نه لرلــه؛ زمــوږ د کلې لوړو غرونو، ګڼو ځنګلونو، روانو اوبو، ډکو رودونو او نورو قدرتي مظاهرو په ما کې د شعر او شاعرۍ قریحــه را ژوندۍکړه)). هغه په ادبي، اجتماعي، فلسفي او مذهبي مسایلو کې لوی لاس درلود او ښه محقق او څېړونکی هــم و. د هغه د نثر یوه بېلګه:

شلمه پېړۍ ده، او په دې پېړۍ کې هرڅوک د خپل ذوق سره برابر نومونه زده کوي، دا منم چې دا نومونه به چــا بــې موجبه نه وي ایښي، دې نومونو کې به ضرور ددې عصر د ښکاره او ممتازو خصوصیاتو نه الهام اخیستی شوی وي.

مثلا څوک یې د برق زمانه بولي او چا ورته د سرعت پېړۍ ویلې. دا لاڅه کوې نن پرون اتوم منځ ته راغلی او ددې پېــړۍ نسبت خلک غواړي ددې پېړۍ دې شانداره مګر خطرناک مولود ته وکاندی...)

د اروانښاد د سید شمس الدین مجروح د شعر یوه بېلګه:

د صحــــرا ښـــــــــــایسته ګله !
دغه خوب خلوت تـــــــــر کله
واوره څـــــــــــــــه وایې بلبله

له درانه خـــــــــــوبه را پاڅه     شه بهر له تـــــــــورو خاورو
خوږې مـــــور د طبیعت دې     بـــړستن غـــونډه کړه د واورو

زه به خپل کتاب کړم پورې
هیڅ به نه کـــړم سودا نورې
ځـــم به اوس د غره پرلورې

غـــــــــــوړولی ښــــــــه رنګین     کایناتو لـــــــــــوی کتاب دی
ګل بلبــــــل شنـــه شنیلي دي     دا یې فصل دا یې باب دی

**اخځلیکونه:**


_ عبدالرؤف بینوا، اوسنی لیکوال، دریم ټوک، ۱۳۴۶ کال، دولتي مطبعه
_ د سید شمس الدین مجروح، منتخب اشعار، پښتو ټولنه، ۱۳۳۶ کال، کابل، دولتي مطبعه

## درويشتم لوست

### د تدريس د لارښود پلان

### د تدريس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرح | د مطلبونو سرليکونه |
|---|---|---|
| | د پوهنتون د کانکور له ازموينې سره آشنايي موندل | د لوست موضوع |
| | – د کانکور د آزموينې لپاره په اړينو لارو چارو پوهيدل.<br>– په پوهنتون کې تر برياليتوب وروسته د شاملېدلو لپاره په لارو چارو پوهېدل.<br>– د اورېدلو او خبرو کولو د مهارت پياوړتيا.<br>– د نويو کلمو او لغتونو په معنا او مفهوم پوهېدل.<br>– د لوستلو او ليکلو د مهارت پياوړتيا. | د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې) |
| | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، گروپي فعاليتونه او فردي فعاليت | د تدريس لارې |
| | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه او قلم. | د تدريس وسيلې |
| | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو او گروپي کارځارل او پايلې يې په کتابچه کې ياداشت کول. | د ارزونې لارې او وسيلې |
| ۴ دقيقې | لومړنی فعاليت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او د کورني کار کتنه | د زده کړې او تدريس فعاليتونه |
| ۶ دقيقې | د لاندې پوښتنې په واسطه ښوونکی، زده کوونکي لوست ته ځير کوي.<br>۱ـ د دولسم ټولگي تر فارغېدو وروسته تاسو لوړې زده کړې چېرته سـرته رسوئ؟ | د انگيزې رامنځته کول |

| وخت | د زده کوونکو فعاليتونه | د ښوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقيقې | | |
| | – زده کوونکي متن ته غوږ نيسي.<br>– زده کوونکي په لوړ غږ سره د لوست متن لولي او سم تلفظ ته پاملرنه کوي.<br>– زده کوونکي د محاورې او خبرو اترو په ارزښت پوهېږي او د خبرو اترو د کولو د وړتيا زياتونې ته متوجه کيږي.<br>– زده کوونکي د لوست نوې کلمې پيدا کوي او په مناسبو جملو کې يې کاروي. بيا يې پخپلو کتابچو کې ياداشت کوي.<br>– زده کوونکي په وار سره د ټولگي مخ ته راځي او په | – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د ژبې په زده کړه کې د محاورې او خبرو اترو د ارزښت او اهميت په اړه معلومات وړاندې کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته د نويو کلمو د پيدا کولو او په جملو کې د کارولو سپارښتنه کوي.<br>– ښوونکی په ډله ييز فعاليت کې له زده کوونکو سره |

| | |
|---|---|
| مرسته کوي چې ورته محاورې جوړې او اجرا کړي.<br>– ښوونکی دوه، دوه زده کوونکي را غواړي او په شفاهي ډول پرې محاوره اجرا کوي.<br>– ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستیو پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري چې په کورونو کې پرې کار وکړي. | اړونده موضوع یو له بل سره خبرې اترې کوي.<br>– زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې د ښوونکي له لارښوونې سره سم فعاله ونډه اخلي.<br>– زده کوونکي پخپلواک ډول د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– زده کوونکي د کورنۍ دندې په اړه لارښوونو ته متوجه کیږي او سرته یې رسوي. |

**اضافي معلومات:**

زده کوونکي چې کله له دولسم ټولګي څخه فارغ شي، نو د لوړو زده کړو لپاره هڅې پیل کړي نو ددې کار لپاره د کانکور د ازموینې په اړه باید وړ معلومات ترلاسه کړي، دا معلومات دکانکور په لارښود کې شته چې د لوړو زده کړو د وزارت له خوا چاپ شوي او د نویو محصلینو د پوهاوي لپاره د ښوونځیو په واک کې ورکول کیږي. او هم کېدای شي چې د کانکور د ازموینې د کمېټې له خوا د کانکور په اړه دغه لارښود ترلاسه کړي.

په دغه لارښود کې په نمونوي او بیلګه ییزه توګه زده کوونکو ته د لوستل شویو مضامینو په اړه پوښتنې ورکړل شوي وي چې سم ځواب یې هم لیکل شوی دی.

لومړی ستاسو د نوم د ID کارت او نورو لارښوونو په اړه چې څرنګه د ځوابونو پاڼه ډکه کړئ او خپل نوم څېرته ولیکئ، د ځوابونو د حلولو ترتیب او تنظیم ټول پکې په مفصله توګه لیکل شوي او هغه ځانګړي استادان چې په ټولګي کې ستاسو د کانکور د ازموینې لپاره ګومارل شوي دي. د وړ معلوماتو په وړاندې کولو سره تاسو د ازموینې د پړاو د تیرولو لپاره په ښه توګه لارښوونه کوي. لنډه دا چې د کانکور د ازموینې د تیرولو پخوا باید دغه د لارښوونې دغه بېلګه ییزې پاڼې په سمه توګه ولولي. او د خپل ښوونځي اداري څخه یې کولای شي په وړیا توګه ترلاسه کړي. تر وړ معلوماتو وروسته د کانکور د ازموینې صحنې او ډګر ته ولاړ شئ ترڅو کښلې خواړې مو بې ځایه لاړه نشي. زده کوونکي به ډېره هڅه کوي چې ټاکل شوی وخت په پام کې ونیسي او ضایع یې نه کړي او هم د ځوابونو په پاڼه کې ټاکلې شمېرې په نښه کړي او د ټاکلې شمېرې پرځای بله شمېره توره نه کړي چې ټول ځوابونه غلطیږي.

**اخځلیکونه:**


ـ څېړنوال سید محی الدین هاشمي، ادب پوهنه، د اریک ګرځنده کتابتونو اداره، ۱۳۸۱ کال.
ـ پوهاند صدیق الله رښتین، د پښتو ادبي مکتوبونه او سبکونه، ....... پېښور، ۱۳۸۸ کال.

## خلرویشتم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | پښتو ادبي مکتبونه | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | – د ادبي مکتب د اصطلاح سره آشنایي پیدا کول.<br>– د نړۍ په ادبیاتو کې د مختلفو ادبي مکتبونو پېژندل.<br>– د پښتو د مشهورو ادبي مکتبونو په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>– د لوستلو او لیکلو د مهارت پیاوړتیا.<br>– د اورېدلو او خبرو کولو د مهارت پیاوړتیا.<br>– د پښتو د ادبي مکتبونو د استازو پېژندل. | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | د لاندې پوښتنې په کولو سره د انګیزې رامنځته کول.<br>_ مکتب یوازې د لوست د ځای په معنا دی او که بله معنا او مفهوم هم لري؟<br>آیا تاسې د ادبي مکتب په اصطلاح او معنا پوهیږئ؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکــو ســره مرسته کوي.<br>– ښوونکی متن په څو برخو وېشي، له زده کوونکو سره د پښتو د نثر د دوِلونو په اړه خبرې کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چې نوې کلمې په جملو کې وکاروي.<br><br>– ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي او پوښتنې کوي. | – زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي متن په لوړ غږ لولي او د کلماتو سم تلفظ ته متوجه کیږي.<br>– زده کوونکي د بیلابیلو ادبي مکتوبونــو پرځانګړتیــاو ځانونه پوهوي.<br>– څو تنه زده کوونکي پخپله خوښه د ټولګي په وړاندې د پښتو د بیلابیلو ادبي مکتوبونو په اړه په ساده ژبه خبــرې کوي او نور زده کوونکي ورته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي د لوست نوې کلمې پیدا کــوي، او پــه جملو کې یې کاروي، او بیا یې په کتابچو کــې یاداښــت | |

| | |
|---|---|
| - ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده کوونکـو سـره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستیو پوښـتنو او ځوابونو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | کوي.<br>- زده کوونکي لنډیز ته غوږ نیسي او پوښتنو ته ځوابونـه وايي.<br>- زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کوې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده کوونکي پخپلواک ډول د متن د وروسـتۍ برخـې پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>- زده کوونکي کورنۍ دنده پخپلو کتابچو کې یاداشـت کوي او په کورونو کې پرې کار کوي. |

**اضافي معلومات:**

د ادبي مکتب پیژندنه او ځانګړتیاوې په لوست کې روښانه شوي دي. دلته د پښتو ادبي مکتبونو په رامنځتـه کیـدو او جریان باندې خبرې کوو.

روښاني ادبي مکتب: دغه ادبي مکتب د لسمې هجري پیړی په دویمه نیمایي کې رامینځته شوی، بسـنتګر یـې عـالم او لیکوال بایزید روښان (۹۲۵- ۹۸۵ هـ ق) دی. نوموړي خپله لاره او سبک رامینځته کړ. ډېر پلویان یـې وموندل، هغوی دده لاره تعقیب کړه او د ورښاني ادبي تصوفي مکتب بنسټ یې کېښود، ددې مکتب د پیاوړو لیکوالو د شـاعرانو څخه د ارزاني، علي محمد مخلص، دولت لواڼي، ابابکر کندهاری، واصل روښاني، میرخان روښاني، میرزاخان انصـاري، اورکزی او قادر داد نومونه یادولای شو ددغه مکتب ادبي ځانګړنې:

۱- د تصوف او عرفان پیچلو مسایلو او اصطلاحاتو په پراخه کچه پښتو ادب ته لاره پیدا کړه. یا په بله وینا: عرفان د یو مسلک په توګه پښتو ادب ته راغلی دی.

۲- د عربي او فارسي شاعرۍ زیاتره شکلی فورمونه لکه: قطعه، رباعي، قصیده او نور پښتو ادب ته رانوتل او شاعرانو د عربي او فارسي ژبو د شاعرانو په څېر مردف دیوانونه جوړ کړي دي.

۳- په نثري لیکنو کې مسجع نثر رواج شوی دی.

۴- اخلاقي او دیني مسایل په شعر او ادب کې زیات شوي، حماسي او ملي روحیه پکې ډېره ټیټه او کمزورې ښکاري.

۵- دا چې ددې دورې زیاتره لیکوال او شاعران د هند پر څمکو او سیدلي او یا هلته تللي دي د هندي فرهنګ اغېـزې پرې جوتې لیدل کېږي.

٦- په پښتو ادب د عربي او فارسي ادب اغیز ډېر زیات شوي دي. ددې دورې لیکوالو او شاعرانو پخپله پـه عربـي او فارسي ژبو آثار لیکلي دي او یا یې ژباړنې ورڅخه کړي دي.

د خوشحال ادبي مکتب: دغه مکتب کله کله په ادبي څېړنو کې د خټکو د ادبي مکتب په نوم هم یاد شوی دی.

په یولسمه هجري پیړۍ کې منځته راغلی او بنسټ ایښودنکی یې د پښتو ژبې پیاوړی لیکوال او شاعر خوشـحال خـان خټک (۱۰۲۲- ۱۱۰۰ هـ ق) و.

د نوموړي ادبي لار دده زامنو لمسیانو او نورو پلویانو د زړه په وینه او مینه پاللې او د خوشحال ادبي مکتب یـې جـوړ کړی دی.

ددې مکتب نومیالي پلویان: اشرف خان هجری، عبدالقادر خان خټک، سکندر خان خټک، صدرخان خټک او نور دي.

ادبي ځانګړنې:

– پښتو ادب یو نوې پرمختیایي پړاوته داخلیږي او ددې د پراختیا لپاره شعوري هڅې پیل کیږي.
– مسجع او متکلف نثر پرځای ساده، روان او د خلکو محاورې ته نږدې نثر لیکنه پیل کېږي او د ځېکو ځانگړی لیکدود او رسم الخط، رامنځته کېږي.
– د خوشحال خان خټک په شاعرۍ کې حماسي، رزمي او ملي روحیه ډېره پیاوړي کېږي او د پښتنو له ټولنیز ژوند څخه رنگ اخلي.
– پښتو شعر د مضمون له پلو ه بشپړه کیږي. او پښتو ژبې ته دشرقي شاعرۍ ټول ډولونه له غزل، قصیدې، رباعي، مثنوي او مربع سربېره چې مخکې یې بېلگې وې، مسدس، مشمن، ترکیب بند، ترجیع بند، ذوالقافیتین او نور ډولونه په پراخه توگه په پښتو شعر کې رواج مومي، پښتو ملي کیسې ولیکل شوې. د موضوع د رنگارنگۍ او هنري پلوه ددې دورې ادبیات بډای کېږي.
– عبدالرحمٰن بابا تصوفي، عرفاني ادبي مکتب:
د پښتو پیاوړی رحمان بابا (۱۰۴۲– ۱۱۲۸هــ ق) د یو ځانگړی تصوفي عرفاني ادبي سبک خاوند و چې زیات مقبولیت یې درلود او په ادبي څېړنو کې د رحمان بابا د تصوفي، عرفاني ادبي مکتب په نوم یاد شوی دی.
پلویان یې، یونس خیبري، معزالله مومند، اخون گدا، میا نعیم متي زی، عبدالرحیم هوتک، مطیع الله او نور دي.
ادبي ځانگړنې: زیاتره د اخلاقو او نصایحو د بیان خواته ډېره پاملرنه کوي.
– د تصوف او عرفان پیچلې مسلې په ساده، روانه او خوږه ژبه بیانوي.
– د عربي فارسي ژبو کلمات، اصطلاحات، تشبهات او استعارات په پراخه کچه پښتو شاعرۍ ته راننوتل.
– د پښتو شعر وده ومندله او شاعرانو دیوانونه جوړ کړل. د پښتني چاپېریال اغېز پکې ډېر دی.
– هنري انځورونه ساده مگر ښکلي او رنگین او لوړ ادبي معیار یې در لود. ددې ادبي مکتب پلویانو واقعیت ته خاصه پاملرنه درلوده. او ددې مکتب پلویانو پر پښتو سربېره په عربي او فارسي ژبو هم شاعرۍ کړې ده.
د عبدالحمید مومند او کاظم خان شیدا د نازک خیالۍ ادبي مکتب:
د پښتو د نازک خیالۍ ادبي مکتب د دولسمې هجري پیړۍ په اوږدو کې د هندي مکتب تر اغېز لاندې رامنځته شوی دي. او بنسټ اېښودونکی یې نازک خیاله شاعر عبدالحمید مومند دی او بشپړوونکی یې کاظم خان شیدا دی.
ادبي ځانگړنې: اوچت تخیل، نوښت، نادرې استعارې او تشبیه گانې، ددې ادبي مکتب بنسټیزې ځانگړنې دي.
– پیروان یې زیاتره غزل ویونکي دي. د اشعارو موضوع یې د مینې او محبت خبرې دي. د خیال پر نازکۍ سربېره د الفاظو او عبارتونو ښکلاته هم پاملرنه کوي. په شعرونو کې متلونه، محاورې او سیمه ییز اصطلاحات ډېر کارول شوي دي.
د فارسي ژبې او ادب اغېز د دې مکتب پلویانو زیات منلی دی.

**اخځلیکونه:**


ـ څېړنوال سیدمحی الدین هاشمي، ادب پوهنه، د اریک د کتاب گرځنده اداره. ۱۳۸۱ کال، پېښور.
ـ پوهاند صدیق الله رښتین، د پښتو ادبي مکتبونه او سبکونه، ......... پېښور، ۱۳۸۸ کال.

## پنځه ويشتم لوست

### د تدريس د لارښود پلان

### د تدريس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د پښتو نثر ډولونه | |
| د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې) | - د نثر په تعريف او معنا پوهېدل.<br>- د نثر او نظم ترمنځ په توپير پوهېدل.<br>- د پښتو د نثر له ډولونو سره آشنايي موندل.<br>- په لوست کې ګرامري برخې او نوې کلمې زده کول.<br>- د لوستلو او غوږ نيولو مهارت پياوړی کول.<br>- د متن سم لوستل او زده کول. | |
| د تدريس لارې | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعاليتونه او فردي فعاليت | |
| د تدريس وسيلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو او ګروپي کارځارل او پايلې يې په کتابچه کې ياداشت کول. | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | لومړنی فعاليت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقيقې |
| د انګيزې رامنځته کول | ښوونکی دې د لاندې پوښتنو په کولو سره لوست تـه لاره پرانيـزي او زده کوونکي دې بحث ته راوهڅوي.<br>- نثر کومې وينا او خبرو ته وايي؟<br>- نثر له نظم او شعر سره څه توپير لري؟ | ٦ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی متن په لوړ آواز لولي. | - زده کوونکي متن ته غوږ نيسي. | |
| - ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکـو سـره مرسته کوي. | - زده کوونکي په لوړ غږ سره د لوست متن لولي. | |
| - ښوونکی متن په څو برخو ويشي، له زده کوونکو سره د پښتو د نثر د ډولونو په اړه خبرې کوي. | - زده کوونکي د نثر پر بيلابيلو ډولونو ځانونه پوهوي. | |
| - ښوونکی زده کوونکي را غواړي او د نثر د ډولونو پـه اړه يې غږوي. | - څو تنه زده کوونکي په وارسره د ټولګي پـه وړانـدې راځي او د نثر د ډولونو په اړه خبرې کوي. | |
| - ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چې نوې کلمې په جملو کې وکاروي. | - زده کوونکي د لوست نوې کلمې پيدا کوي او بيا يې په جملو کې کاروي. | |
| - ښوونکی د وينا لپاره د ټـولګي پـه وړانـدې زده زده | - زده کوونکي د ټولګي مخ ته راځـي او پـه اړونـده | |

| کوونکي راغواړي چې د ټاکلې موضوع په اړه خبرې وکړي. | موضوع باندې خبرې کوي. |
| --- | --- |
| – ښوونکی د لوست لنډيز بيانوي. | – زده کوونکي د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او مهم ټکي يې په خپلو کتابچو کې ياداشت کوي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستيو پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. | – زده کوونکي پخپلواک ډول د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري چې په کورونو کې يې بشپړه کړي. | – زده کوونکي کورنۍ دنده ياداشت کوي او په کورونو کې يې سرته رسوي. |

**اضافي معلومات:**

د نثر لغوي او اصطلاحي پيژندنه: د نثر لغوي معنا په فرهنگونو کې تيت کېدل او شيندلو ته وايي په ادبي اصطلاح کې نثر يو ادبي ډول دی او ځرنگه چې د وزن اړ قافيې له قيد خلاص دی، نو د هر ډول افکارو د افادې او بشري پوهې، ديني، فلسفي، ښوونيزو ـ روزنيزو او ټولنيزو مسايلو د ځرگندولو مناسبه وسيله ده.

نثر د ليکنې د طرز له مخې پر دريو سترو ډولونو وېشل کېږي:

۱– ساده يا مرسل نثر: چې لفظي ا معنوي صنايع پکې نه وي، کارول شوي.

۲– هنري نثر: چې ليکوال ور سره خپل احساسات او عواطف هم ملگري کوي.

۳– ساده ولسي نثر: چې کټ مټ د خلکو په ژبه وي چې ځرنگه ويل کيږي هماغسي ليکل کېږي.

د معنا او محتوا له مخې د نثري آثارو ډولونه: د محتوا او موضوع له مخې نثري آثار په لاندې ډولونو وېشل کېږي.

– حماسي منثور آثار:

– غنايي نثري آثار

– تاريخي نثري آثار

– عرفاني نثري آثار

– علمي او فلسفي نثري آثار

– انتقادي نثري آثار

همدارنگه د بڼې او شکل له مخې هم نثرونه پر دوه ډوله دي:

۱– ساده نثرونه

۲– مسجع نثرونه: هغه نثرونه چې سجع ولري

**اخځليکونه:**

ـ څېړنوال محی الدين هاشمي، ادب پوهنه، د اريک د کتاب گرځنده اداره. ۱۳۸۱ کال، پېښور.

ـ سرمحقق زلمی هېوادمل، اولسي سندرې، لومړی ټوک د افغانستان د علومو اکاډمي، ۱۳۶۱هـ.ش. کال.

# شپږ ویشتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | ګابریل کولیټ | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | - د ګابریل کولیټ د ژوند په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>- د کیسه ییز ادب په برخه کې له ګټورو مطلبونو څخه خبرېدل.<br>- د نړیوال ادب په اړه ښه معلومات ترلاسه کول.<br>- د غوږ نیولو او لوستلو د مهارت پیاوړتیا.<br>- د نویو کلمو او لغتونو زده کول. | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارڅارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | ښوونکې دې د لاندې پوښتنې په کولو سره زده کوونکي لوست ته ځیر کړي.<br>- تاسو دکوم بهرني لیکوال د نظم او نثر کوم اثر لوستلی دی؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده کوونکي په ډلو ویشي او هرې ډلې ته سپارښتنه کوي چې د ګابریل د ژوند په اړه معلومات را ټول او په ټولګي کې یې واوروي.<br>- ښوونکی سپارښتنه کوي چې زده کوونکي نوي کلمات پیدا او په جملو کې یې وکاروي.<br>- ښوونکی د ګابریل په اړه له زده کوونکو څخه پوښتنې کوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي. | - زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده کوونکي په لوړ غږ متن لولي او سم تلفظ زده کوي.<br>- زده کوونکي د ډله ییز فعالیت په بهیر کې د ګابریل کولت د ژوند په برخه کې معلومات ترلاسه کوي او د هرې ډلې استازې یې د ټولګي په وړاندې لولي.<br>- زده کوونکي د متن نوې کلمې پیدا کوي او په جملو کې یې کاروي.<br>- زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده کوونکي لنډیز ته غوږ نیسي او مهم ټکی یې په کتابچو کې یاداشت کوي. | |

| – ښوونکی یو، یو زده کوونکی را غواړي چې د ګابریل کولټ په اړه وغږیږي. | – زده کوونکي د ټولګي په وړاندې یوه، یوه دقیقه د ګابریل کولت په اړه خبرې کوي. |
|---|---|
| – ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستیو فعالیتونو د حل سپارښتنه کوي. | – زده کوونکي په وار سره د متن وروستۍ پوښتنې ځوابوي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | – زده کوونکي په کورنۍ دنده ځانونه پوهوي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

**اضافي معلومات:**

د نړیوال ادب په ډګر کې ډېرو شاعرانو او لیکوالانو ونډه لرلې ده او د بشریت دغه فرهنګي زېرمه د هغوی د هنري او ادبي پنځونو له کبله بډایه او غني شوې ده، چې دلته د نړیوال ادب د ښځینه لیکوالو له ډلې څخه یوه تنه درپیژنو:

مادام سیدوني ګابریل کولیټ فرانسوي کیسه لیکونکې، په ۱۸۷۳م کال د فرانسې په خیتځ د سن سوران پوازې په سیمه کې سترګې نړۍ ته پرانیستې، پلار یې د هغو سردارانو له ډلې څخه و چې ناپیلون له دندې ګوښه کړی او پر بزګرۍ بوخت و. همدا لامل و چې میرمن له هر څه زیاته د طبعیت د زړه وړونکو منظرو سره آشنا شوه.

نوموړې خپلې لومړنۍ زده کړې د خپلې سیمې په ښوونځي کې تر سره کړې او بیا د دندې د ترلاسه کولو لپاره پاریس ته ولاړه او له یوه ژورنالیست سره یې هلته واده وکړ. کولت ډېر ښه داستانونه په ورځپاڼو کې خپاره کړل، خو له بده مرغه د هغې مېړه دغه ټولې کیسې په خپل نوم چاپ کړې چې په پایله کې د هغې او مېړه ترمنځ د شخړو او لانجو لړۍ پیدا شوه او دا کار د دې سبب شو چې هغه له خپل مېړه څخه جلا او بېله شي. تر دې وروسته هغه د خپل ژوند د تېرولو لپاره دې ته اړ شوه چې یو لړ هنري فعالیتونه پیل کړي او د نندارو د ترسره کولو له یوې ډلې سره ملګرې شوه. د نندارو د ترسره کولو لپاره لرې ښارونو ته هم تګ کاوه او د خپلو راتلونکو ادبي فعالیتونو لپاره یې ډېر مواد هم ترلاسه کړل. مېرمن کولیټ د سیدو په رومان کې له خپلې مور سره د زیاتې مینې څرګندونه وکړه چې په ۱۹۳۶ز. کال یې د بلژیک د سلطنتي اکاډمۍ غړیتوب ترلاسه کړ او د (ژی ژی) د ناول له خپرولو وروسته یې په ۱۹۴۴ز کال د کنګوري د اکاډمۍ غړې او بیا ددې اکاډمۍ د ریاست چارې هم ور وسپارل شوې، هغې په ۱۹۴۸ز کال کې خپل لیکلي اثار په بشپړه توګه چاپ او خپاره کړل، د فلج د ناروغۍ له کبله یې ادبي فعالیتونو ته دوام ور نه کړای شو ، چې په پایله کې په ۱۹۵۴ م کال په پاریس کې له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

مېرمن کولیټ د خپل ادبي هنري ژوند په دوران کې ۷۵ کتابونه، زیاتې مقالې او لنډ داستانونه ولیکل چې د هغو له جملې څخه له ډېرو څخه یې فلمونه هم جوړ شوي دي.

**اخځلیک:**

_ له انټرنېټ څخه.

## اووه ویشتم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | پښتو ناول | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | – د ناول پېژندل او په معنا او مفهوم يې پوهېدل.<br>– د پښتو ناول سره اشنايي پیدا کول.<br>– د لوستول او غږ نیولو مهارت پیاوړي کول.<br>– پښتو ادب ته د ناول د راتګ په څرنګوالی پوهیدل.<br>– په متن کې له نویو کلمو او لغتونو سره بلدتیا موندل. | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | |
| د تدریس وسیلې | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | ښوونکی دې د لاندې پوښتنو په کولو سره ته لاره پرانیزي او زده کـــوونکي دې بحث ته وهڅوي.<br>_ ناول څه ته وایي؟<br>_ ناول او کیسه څه توپیر سره لري؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکـــو ســـره مرسته کوي.<br>– ښوونکی متن په څو برخو ویشي، له زده کوونکو سره د پښتو ناول په اړه خبرې کوي.<br>– ښوونکی له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د څـــو ناولونو نومونه واخلي نور زده کـــــوونکي یې د لیکوال نومونه واخلي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چـــې نـــوې کلمې په جملو کې وکاروي. | – زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي متن په وار سره په لوړ غږ لولي او د کلماتو تلفظ ته پاملرنه کوي.<br>– زده کوونکي د پښتو ناول په اړه ځانونه پوهوي.<br>– څو تنه زده کوونکي پخپله خوښه د څو مشهورو نـــاولونو نومونه یادوي او نور یې د لیکوالو نومونه پر توره دړه لیکي.<br>– زده کوونکي د لوست نوې کلمې پیدا کوي او په جملـــو کې یې کاروي، بیا یې پخپلو کتابچو کې یاداشت کوي. | |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستیو پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. | – زده کوونکي د متن د وروستیو برخو پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی زده کوونکي په ډلو ویشي او هرې ډلې ته فعالیت ټاکي. | – زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي. |
| – ښوونکی د څو پوښتنو په کولو سره د لوست ارزونه کوي. | – زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | – زده کوونکي په کورنو کې کورنۍ دنده سرته رسوي. |

**اضافي معلومات:**

– په داستاني ادب کې ډرامه، داستان، ناول، لنډه کیسه په لومړۍ لیکه کې راځي. د ادب دغه ټول ډولونه پخپلو کې ځانګړنې هم لري او ډېر امتیازي خصوصیات هم. . .

– لنډه کیسه د ناول د پرمختللي دور پیداوار دی. ناول د ډرامې او ډرامه د رزمیه نظمونو او منظومو کیسو څخه زېږېدلی ده، د ادب په دې ټولو ډولونو کې ځینې خبرې ګډې دي او د ګډون وجه یې تدریجي پرمختګ ده، خو د ټولو نه لوی ګډ ټکی او مشترکه وجهه پکې کیسه ده.

ښاغلی حبیب الله رفیع د ناول په اړه وايي چې: ناول یو ادبي صنف دی چې په یوه هنري، فني او عالي ژبه لیکل کېږي، ناول د لرغونو رومانونو په کور کې سترګې وغړولې او په میراث یې ناست دی. رومانونو غیر طبیعی بڼه درلوده، ډېرې ماوراءالبطیعي او خارق العاده پېښې به پکې پېښېدلې او هغه ډېر څه پکې کېدل چې ناشوني دي، د بشري ټولنې له پرمختګ سره نور نو دا تخنیکي، تصوري پېښې او کیسې د منلو وړ نه وې او آن دا چې لوستنه او اورېدنه یې د وخت ضایع کېدل بلل کېدل.

نو ځکه هغه روماني او خیالي کیسو بدلون وموند او خپل ځای یې ناول ته پرېښود.

ناول د انساني ټولنې څخه خپل مواد واخیستل او له داسې پېښو څخه یې غبږ را وڅرخوله چې له روان ژوند سره ترلې طبیعي، عقل منونکي او ذهن ته لوېدونکي دي او لوستونکی یا اورېدونکی داسې فکر کوي چې دا نو یوه نوې واقعي او رښتینې پېښه ده.

د ناول لیکنې پیلامه په لویدیځ کې وشوه، هلته دمخه اوږدې روماني کیسې دود وې، چې پکې به داسې پېښې بیان شوې وي، چې هغه به په عام ژوند کې نشوای رامنځته کېدلای، یا به نه واقع کېدې، په دغو اوږدو کیسو او داستانونو کې د پیریانو، ښاپیرو، دیوانو او نورو غیبي موجوداتو کردارونه وو. د جادو، تعویذونو د اغېز پېښې پکې ډېرې وې او له رښتیني انساني ژوند سره یې اړیکه نه وه. نو په همدغه مهال کې د (۱۸) پېړۍ په وروستیو کې په اروپا کې ناول د یو ادبي صنف یا ژانر په توګه رامینځته شو. په لومړي ځل لیکوالانو داسې کیسې ولیکلې چې د رښتیني ژوند سم انځور پکې کښل شوی و او هیڅ یوه پېښه هم په کې داسې نه وه چې د هغې کېدل دې په عام ټولنیز ژوند کې شونی نه وي.

په پښتو ادب کې ناول په اوسني مفهوم سره له اردو ژبې څخه د ژباړې له لارې راغلی دی. په دې لړ کې له اردو ژبې څخه د ډیپټي نذیراحمد د لیکلو ناولونو (مراة العروس) او توبة النصوح، پښتو ژباړې د یادولو وړ دي چې لومړی یې میا حسیب ګل کاکا خېل او دویم یې محمد یوسف کاکا خېل ژباړلی دی.

وروسته پښتنانه لیکوال له دغه فن سره آشنا شول او لومړی لیکوا ل په دغه ډګر کې سیدراحت زاخیلی دی، چې د لنډې کیسې په څېر د لومړني پښتو ناول لیکونکي ویاړ هم ور په برخه شوی دی.

د پښتونخوا یو شمېر نورو لیکوالانو هم د ناول په ډګر کې خپل نیلی ځغلولی دی، خو په افغانستان کې د ناول لیکنې

پېلامه په ژباړې سره شوې ده. اروابناد استاد عبدالحی حبیبي لومړنی لیکوال دی چې د ویکټور هوګو لوی نـاول یـې د بېوزلان په نوم ژباړلی او په ۱۳۱۱ لمریز کال یې د طلوع افغان په ګڼو کې په پر له پسې توګه خپور کړی دی.
همدارنګه په طلوع افغان کې په همدغو کلونو کې ځینې نورناولونه یا ناولګي هم خپاره شوي دي.
په پښتو ژبه کې لومړنی لیکل شوی ناول د برهان الدین کشککی (پټه مینه) ده چې په ۱۳۱۷ لمریز کال خپور شوی دی او په ۱۳۱۸ لمریز کال د نوموړي لیکوال یو ژباړلی پولیسي ناول( په پټه د پټو پلټنه) په نوم ژباړل شوی او پـه همدغـه کال د محمد رفیق قانع لیکلی ناول (دوه سره مین ورونه) چاپ شوی چې په همدغه کلونو کې د نور محمد تـره کـی لیکلي ناول(بی تربیه زوی) د کابل مجلې په پر له پسې ګڼو کې خپور شوی دی.
وروسته یو شمېر نورو پښتنو لیکوالانو هم ناولونه لیکلي او په خپل وخت کې چاپ شوي دي.
ناول په لومړي سر کې له دوو اړخونو په ځانګړو ډولونو وېشلی شو.
۱– د فن له مخې
۲– د موضوع له مخې
– د فن له مخې ناولونه په دوه ډوله دی، کرداري ناولونه _ واقعیتي ناولونه.
– د موضوع له مخې ناول ګڼ ډولونه لرلای شي، ځکه چې په انسان او ټولنې پورې هره اړونده موضوع بانـدې نـاول لیکل کېدای شي یا په بله وینا د ناول موضوع ګرځېدای شي.

**اخځلیکونه:**

_ زرین انځور، په افغانستان کې د پښتو هنري او داستاني نثر رامنځته کېدل، سپېدې مجله، ۱۴ ګڼه د افغانستان کلتوري ټولنه ، پېښور.
_ سید محی الدین هاشمي، په پښتو ادب کې د هنري نثرد نویو ادبي ژانرونو پیدایښت او پایښت، علمي څېړنیزه پروژه د افغانستان د علومو اکاډمی، د پښتو څېړنو نړیوال مرکز، ۱۳۸٦ کال. کابل.

## اته ویشتم لوست

### د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: په اوونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرح | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | قافیه شرح | د لوست موضوع |
| | – د قافیې په لغوي او اصطلاحي معنا پوهېدل.<br>– په شعر کې د قافیې پر ارزښت او اهمیت باندې پوهېدل.<br>– د قافیې په کلمو او حرکتونو باندې پوهېدل.<br>– د قافیې له ډولونو سره آشنايي پیدا کول.<br>– د لوستلو او غوږ نیولو مهارت پیاوړي کول.<br>– په متن کې نوې کلمې او اصطلاحات موندل، د هغو لیکل او معنا کول. | د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې) |
| | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه او فردي فعالیت | د تدریس لارې |
| | د لوست کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. | د تدریس وسیلې |
| | شفاهي ارزونه او عملي کار<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کارځارل او پایلې یې په کتابچه کې یاداشت کول. | د ارزونې لارې او وسیلې |
| ۴ دقیقې | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورني کار کتنه | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ٦ دقیقې | پر تخته د ژړا، بر، ګل، خندا، باغ د کلمو لیکل او له زده کوونکو څخه پوښتنه کول چې هم قافیه کلمې یې پیدا کړئ، وروسته بیا د قافیې په لوست پیل کول. | د انګیزې رامنځته کول |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی متن په لوړ آواز لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.<br>– ښوونکی د قافیې لوست په څو برخو ویشي، هره برخه یې په بېل بېل ډول له بیلګو سره یو ځای په زده کوونکو تمرینوي، له ډېر ترلاسه کولو وروسته بلې برخې ته ځي او د لومړۍ برخې په څېر یې پر زده کوونکو تمرینوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته سپارښتنه کوي چې نوی کلمات پیدا او په جملو کې یې وکاروي.<br>– ښوونکی د قافیې په اړه پوښتنې کوي او د ځوابونو په | – زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي په لوړ غږ سره متن لولي او سم تلفظ زده کوي.<br>– زده کوونکي د ډله ییزو فعالیتونو په بهیر کې قافیه او د هغې ډولونه لټوي او له زده کړې څخه یې ځانونه ډاډمن کوي.<br>– زده کوونکي د متن نوي کلمې پیدا کوي او په جملو کې یې کاروي.<br>– زده کوونکي اړوندو پوښتنو ته ځوابونه وايي. | |

| | |
|---|---|
| ویلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي. | |
| – ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده کوونکو سره مرسته کوي. | – زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته د متن د وروستۍ برخې د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. | – زده کوونکي د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته په خپواک ډول ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی په څو پوښتنو سره د لوست ارزونه کوي. | – زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | – زده کوونکي په کورنۍ دنده ځانونه پوهوي او په کورونو کې يې بشپړوي. |

**اضافي معلومات:**

قافیه: په لغت کې د څټ، شا، پس گردن په معنا ده. د یو شي آخر یا د بیت آخري توري یا وروستۍ کلمې ته قافیه وايي. په اصطلاح کې هغه علم دی چې د دورونو له وروستیو همآهنگیو څخه بحث کوي. یا په بله وینا د بیت د پای کلمه چې شعر ورباندې ختمیږي او اعاده یې په ورپسې بیتونو کې لازمه وي قافیه بلل کېږي.

د قافيې پلویان وايي چې قافیه په نظم کې داسې ده، لکه د ناوې لپاره زېور، څرنگه چې یوه ناوې په زېوراتو ښایسته وي همداسې نظم په قافیه ښکلي وي. د قافیه لرونکو بیتونو څو مثالونه راوړو:

آخر تلل دي له دنیـــا خـــالي لاسونه ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ څـــوک دې نـــن او سبـــا وتړي بارونه

دې دنیا کې امتحـــان دی ای آدمــــه ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ خـــوښه ستاده که کړې ښه که بـــد کارونه

څومره سخت مقام لحد ته کوزېدل دي ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ د عبرت ځای دی که څوک وکړي سوچونه

په پورتنیو بېتونو کې د (بارونه، کارونه او سوچونه) کلمې قافيې کلمې دي چې لازمه همآهنگي پکې واقع ده.

د قافيې توري: د قافيې توري (آوازونه) اوه (۷) دي. او دوه توري چې مزید او نایر دي عجمو ورباندې زیات کـــړي دي چې هر یو ځانته نوم لري په دې ټولو کې د منځ توری ډېر ضرور دی چې بې له هغه قافیه نه جوړېږي او نور اتـــه تـــوري څلور ورځني دمخه او څلور ورځني وروسته راځي. خو ددغو تورو نومونه دادي:

ردف، قید، دخیل، تاسیس، روی، خروج، مزید، نایر، په دې ټولو کې (روي، اساسي توري او د قـــافيې د ملاتیـــر دی او نور یې مرستیالان او ملگري دي.)

روي د قافيې هسته او زړی جوړوي چې د قافيې اصلي غږ دی او بې له روي څخه قافیه نه تړل کېږي.

مخ لکه آفتاب و خپل مین ته ځلوه ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ زړونه د غمازو لکه موم پرې ویلوه

په پورته بیت کې (ځلوه) او ویلوه د قافيې کلمې دي. د قافيې په کلمو کې متحد غږ (ل) روي دی. (و) وصل او (ه) خروج دی.

د یادونې وړ ده چې لومړی متحد غږ هغه وخت روي بلل کېږي چې قافیه موسسه مردفه او مقیده نه وي.

قافيې ډولونه: په لومړي سر کې قافیه پر دوو ډولو وېشل کېږي، چې یوه یو ستوې او بله غبرگه قافیه نومېږي. یو ستوې قافیه هغه ده چې په یوه کلمه کې قافیه راغلې وي. او غبرگه قافیه هغه ده چې د یو بیت پای ته په دوو کلمو کې دوې جلا جلا قافيې راوړل شوې وي چې دې ته په عربي کې (ذوالقافیتین) وايي. د زیاتو معلومات لپاره وگورئ.

**اخځلیکونه:**


ـ پوهنمل محمد آقا شیرزاد، قافیه د صمیم ادبي ټولنه، ۱۳۸۶ کال، کابل.

ـ عبدالرؤف بېنوا، ادبي فنون، کابل، پښتو ټولنه، ۱۳۲۶ کال، کابل.